

# Da Khaurah Au Da Khalak

# REPORT
## ON THE
# TRIBES OF DIR, SWAT AND BAJOUR
## TOGETHER WITH THE
# UTMAN-KHEL AND SAM RANIZAI


BY

CAPTAIN A. H. McMAHON, C.S.I., C.I.E.,

POLITICAL AGENT, DIR, SWAT AND CHITRAL,

AND

LIEUTENANT A. D. G, RAMSAY,

ASSISTANT POLITICAL AGENT, DIR AND SWAT

Edited with an introduction by

R.O. CHRISTENSEN

Transaltion by

Dr. Khaliq Ziar

# دا خاوره او دا خلک



ترجمه: ډاکټر خالق "زیار"

# دا خاوره او دا خلک

د دیر، سوات او باجوړ د قبیلو اتمانخېلو او
سمرانیزي په حقله د مک میهن او رېمزي رپورټ




ترجمه: ډاکټر خالق زیار

د كتاب نوم : دا خاوره او دا خلك

ليكونكى : ملك ميهن او ريمزي

ترتيب : ار-او-كرستنسن

ترجمه : ډاكټر خالق زيار

نېټه : جنوري ملا ۱۹۹۶ سنه ء

شمېر : ۱۰۰۰ جلده

بيه : ۸۰ اتيا روپۍ

ټائټل : سرتور فقير غازيانو ته د وينا په حالت كښې

خطاط : سيد قيوم حقدوست

خوروونكى : - پښتو ادبي جرګه ملاكنډ

# ترتیب

شماره | سرخط | مخ

الف

# خپلې خبرې

دا یو حقیقت دے چې د کوم څیز په حقله سړے معلومات نهٔ لري نو د هغې سره ئې دلچسپي هم نهٔ وي - او څومره چې ئې د یو څیز په حقله معلومات زیاتیږي - نو دومره ئې ورسره تړون او مینه هم زیاتیدله مومي - پیرنګے په دې حقیقت پوهـ ؤ - او دا ورته معلومه وه - چې که چرې پښتانهٔ د خپل تاریخ، تهذیب او ژبې نه بې خبـره شي نو حکومت کول به ورباندې اسان شي - ځکه چې د خپلې خاورې سره به ئې هغه تړون پاتې نهٔ شي د کوم په بنیاد چې دوئ د خپل وطن سره مینه کوي - او مال او سر ورباندې قربانی کوي.

همدا فکر ؤ - چې پیرنګی ورباندې خپلې پالیسی ادا نه کړې - او د دې خاورې د پښتو تاریخي او تهذیبي وده ئې په فطري لاره مخ په وړاندې تلو ته پرېښې نهٔ ښودله .

کله چې د هند نه د پیرنګی تلل یقیني شو او د مذهب په بنیاد د ملک د تقسیم خبره شروع شوه - نو د هغه د هغه برخو مسلمانانو یکښې د پرو تېنکه برخه واخستله چرته چې دوئ د هندوانو په مقابله کښې په اقلیت کښې وو - د دې خلکو روحاني مرکزونه د خپلې خاورې نه بهر جوړ شوي وو - او په یو داسې جذباتي ماحول کښې راګیر وو چې عقل او دلیل ورباندې هیڅ د خل نهٔ کاوه.

کله چې پاکستان جوړ شو - نو د غه خلکو خپله خاوره پرېښودله او پاکستان ته ئې هجرت وکړو - دوئ د خپل اقلیتی احساساتو او شعور

سره راغلل ـ او د پاکستان د مقامي قومونو د ځينو طبقو سره اشتراک يې د حکومت واکې تر لاسه کړې ـ د پاکستان نوي جوړ شوي رياست ته يې سرکاري نظريه ورکړله ـ چې بنياد يې هم د غه بهرنۍ روحاني مرکز او اقليتي شعور وُ ـ د دې نظريې په رڼا کښې د مذهب په اساس د سرکار له خوا د داسې يو خيالي قوم د وجود اعلان وشو ـ چې هيڅ تاريخي او تهذيبي بنيادونه يې نهٔ لرل .

چونکې دا نظريه د تولنيزې ودې د قوانينو په ضد وه نو ځکه په عملي ميدان کښې پاتې راغله ـ البته د دې خوارې د اصلي قومونو فطري وده يې د ګډه وډه ئ او ځنډ سره مخامخ کړه .

اوس دا حقيقت هرچاته په ډاګه شوې دے چې قومونه په سرکاري حکمونو نهٔ جوړېږي ـ بلکې د يو اوږد ارتقائي عمل په نتيجه کښې منځ ته راځي ـ نو ځکه د سرکاري نظريې جوړونکي هم د مُلې په بنياد د خپل بېل تشخص غوښتنه کوي ـ خبريا هم د سرکار له خوا پنځوس کاله د دې نظريې پرچار شوے دے ـ نو ځکه په موجوده وخت کښې د يو حکومت نه هم دا طمعه نهٔ شي کېدلے چې د دې نظريې د جغ نه به په فوري ډول سر وباسي او د نوي سره به د دې ملک د قومونو د تاريخي او تهذيبي پس منظر په رڼا کښې نوې لارې وښائي

نو ځکه داد پښتنو دانشورو ذمه واري جوړېږي چې د دې خاورې پښتانهٔ د خپل تاريخ نه خبر کړي ترڅو چې د خپلې خاورې سره د دوئ ترون بېرته بحال شي - د خپل روحاني قوت سرچينې وپېژني - او په شعوري ډول د دې جوګه شي - چې د خپل قامي وحدت او تولنيزې ودې د پاره لارې چارې ولټوي .

هم د دې ذمه وارۍ د احساس لاندې ما داوړوګې غوښتې کتاب پښتو ته په دې هيله ترجمه کړو - چې نور پښتانهٔ ليکوال هم ترڅېله وسه په دې لار مزل وکړي - له بده مرغه د اجتماعي بېسوادۍ له کبله پښتنو خپل تاريخ نهٔ دے ليکلے ولې په انګرېزۍ کښې په پښتنو زمينت زيات ليکل شوي دي د اليکل که هرڅو ډېر دي - خو په دغه ژبه د نهٔ پوهېدو په وجه ترې ډېر کم خلک استفاده کولے شي - که چرې پښتو ته ئې ترجمې وشي . نو يو خو به ئې ډېر خلک ولولي - او بل به وړاندې د پښتو ژبې لمن هم پراخه شي .

په دې کښې شک نشته چې د تېرو پنځوس کلونو راهسې چې د دې خاورې د پښتنو د ژبې سره کوم سلوک شوے دے د هغې په نتيجه کښې ډېر تعليم يافته ( باسواده ) پښتانهٔ هم پښتو نهٔ شي لوستلے . خو بيا هم په دې نږدې وختونو کښې د اُمېد په اسمان دوه درې ستورې ځلېدلي دي - لومړے دا چې پښتانهٔ لګيا دي د خپلې مورنۍ ژبې په اهميت وره وره پوهېږي ، دويم

دا چې د ۱۹۸۵ء کال راهسې د پښتنو د علاقو په سرکاري سکولونو کښې تر څلورم جماعت پورې پښتو د تعليم ذريعه گرځولې ده او دريم دا چې د افغانستان انقلاب که د پښتنو د پاره نورې په سوونو بد بختۍ راوړې دی - خو دا يو په زړه پورې کار ئې هم کړيدے - چې د دې غاړې او هغې غاړې د ليکوالو په منځ کښې ئې جوخته رابطه پيدا کړيده - هم د دې رابطې په برکت د دواړو غاړو تر منځ د املا ستونځې مخ په ختمېدلو دی - د هغه ځائې خلک د دې ځائې ليکونه لولي او د دې ځائې خلک د هغوی د علمي او ادبي اثارو نه استفاده کولے شي.

د دې حقيقتونو په رڼا کښې سړے په يقين سره وئيلے شي چې د پښتو د ودې او پراختيا د پاره حالات مخ په سنبه روان دی - او که چرې پښتانه دانشور په شعوري توګه دا حالات درک کړي - او خپلې هلې ځلې تېزې کړي نو د پښتو ژبې چټکه وده يقيني کولے شي - او کله چې ژبه سنته شي نو د قامي وحدت لار بيا هيڅوک نه شي نيولے .

په دې کتاب ار - او - کرسټنسن ډېره په زړه پورې پېژندګلو ليکلې ده - زه په دغه لړ کښې څه لېکل نه غواړم . البته دا به ضرور ذکر کړم - چې ما پکښې د دوه درې جملو نه پرته څنګل هيڅ هم نه دی ورکړ کړي - څه چې په کتاب کښې وو - هغه مې ټکی په ټکی ترجمه کړي دی ، دغه دوه درې جملې او د ار - او -

کرستینس لمن لیکونه مې په متعلقه ځای کښې په قوسونو کښې بند کړی دی .

په اخر کښې باید د رحمت شاه سائل، صاحب شاه صابر، مکرم خان ستا او د تاینې د تاج العالم مننه وکړم - د چا د دعا په برکت چې ما دا کتاب په ډېر لږ وخت کښې ترجمه کړو.

« ډاکټر خالق زیار »

# پېژندګلو

د ۱۸۴۹ع نه راپه دېخوا يعني د کله نه چې پېرنګې د سکهانو نه دصوبه سرحد د رات ښوو ضلعو اختيار ترلاسه کړے وُ. د حکومت د ټولو نه زياته توجه دې خبرې ته وه، چې د هند د سلطنت د حربي نقطه نظرنه د اهمو برخو د پوره ساتنې لارې چارې ولټوي، د دې کار د پاره دا لاندې نقطې په ګوته شوې وې.

(الف): دپولې د هغه غاړې د قبيلو له خوا د پېرنګي په نيولو علاقو د بيا بيا حملو مخنيوے.

(ب): د حکومت خلاف د قبيلو په ګډه او منظم ډول د راپاڅېدلو مخنيوے.

(ج): که چېرې د افغانستان سره جنګ ونښلي، نو چې دا قبيلې پکښې برخه وانه اخلي.

(د): د هندوکش له لارې د روس له خوا د حملې وېره البته په نزدې وختونو کښې ئې امکان کم وُ.

ولې د کله نه چې د کابل حکومت د پېرنګي د فشار (دباؤ) په مقابله کښې ورو ورو سرا هېنبودلو او د شلمې پېړۍ په رومبيو کښې د پېرنګي او روس ترمنځ روان رقابت مخ په کمېدلو راغے، نو د دې قبيلو په انتظامي چوکاټ کښې د راوستو مسئله د حکومت د پاره د ټولو نه لويه مسئله جوړه شوه.

حکومت غوښتل چې په داسې طریقه په قبائلي علاقو خپل اختیار قایم کړي. چې نه خو نېغ په نېغه انتظامي چارې په خپل لاس کښې واخلي. او نه د غلته په مستقل ډول فوځونه ډېره کړي. د دې مقصد د حاصلولو د پاره ضروري وه، چې پېرنګي د دې ټولنې د کړو وړو سره ځان اشنا کړي او د پولې د هغه غاړې د قبیلو په سیاست هم ځان پوهه کړي، په دې وجه د سرحد د پېرنګي افسرانو د پاره دا ضروري وه. چې د یو ښه منتظم سره سره د بشر پوهنې علم هم ولري. او د کومو قبیلو سره چې مخامخ دي د هغوې د تاریخ او دود دستور سره پوره واقفتیا پیدا کړي. هم په دې غرض د نورلسمې[19] پېړۍ په آخري لودشلمې پېړۍ په پیل کښې حکومت د قبائلي ټولنې او تاریخ په لړ کښې د معلوماتو یوه لویه ذخیره راغونډه کړله او د رپوټونو په شکل کښې یې د سرحد د سرکاري افسرانو د استفادې د پاره چاپ کړه. دا امکان شته چې دا رپورټونه د صحیح معلوماتو حاصلولو په لړ کښې د ستونځو او د انتظامي وګړو د محدودیت او تعصب له کبله د جانبدارۍ ښکار شوي وي ولې بیا هم ډېر دلچسپ او په زړه پورې په دې دي، چې په لومړي ځل پکښې د صوبه سرحد د قبائلي ټولنې په حقله د معلوماتو وړاندې کولو هڅه شوې ده، او د تاریخ په یوه اهمه برخه کښې د دې ټولنو په باره کښې ډېر څه لري. لنډه دا چې د حکومت دا راپورټونه چې په اصل کښې د انتظامي

چار وپه لړ کښې لیکلی شوی وو ، او س هم د صوبه سرحد د قبائیلي قبولني د پیژندګلو او تاریخ په حقله د معلوماتو سرچینه ده ـ په داسې حال کښې چې د دې رپورټونو یو لویه برخه عام اولس ته نه ده رسیدلې او د یو کم شمېر پوهانو پورې محدوده پاتې شوې ده.

د دیر سوات او باجوړ په حقله د "مک مهن" او ریمزې دا رپورټ په اول ځل په سنه ۱۹۰۱ء کښې د حکومتي راز په توګه چاپ شو ـ د څو کاله وړاندې پورې د دې قبیلو خاوره د پیرنګي افسرانو د پاره تقریباً بېخي نا اشناوه ، د سنه ۱۸۶۳ء د امبیلې د مهم نه بغیر کوم چې د مذهبي وسله وال ګروپ (مجاهدینو) یا د پیرنګي په ژبه د هندوستاني مذهبي جنون پرستو د ټکولو لپاره شوے وُ . حکومت چرې هم دا ځغله نه وه کړې ـ چې د پېښور په شمال کښې قبائیلي علاقو ته لاس وراوږد کړي ـ خو د دې مطلب دا نه دے چې ګني حکومت په دغه حالاتو نظر نه لرلو ـ کوم چې د پولې هغې غاړې ته موجود وو ـ په پېښور کښې د حکومت اختلو سره سم پیرنګي د مخبرانو او لیکوالو په ذریعه د خپل غرض پوره معلومات حاصل کړي وو ـ د عمرا خان جندولي د اخیري جلاوطنۍ او د چترال مهم په نتیجه کښې ځینې واړه خانان چې پنځه کاله وړاندې د عمرا خان دلاسه شړونکي شوی وو ، بېرته په ځای شول ، او ځینې پکښې وټکولے شول ـ او په دې بول په سنه ۱۸۹۵ء کښې پیرنګي

د دې علاقې په سیاست کښې ځان ورګډ کړو. د چترال د مهم دویمه نتیجه دا وه چې د دیر او سوات پولیټیکل ایجنسي پکښې جوړه شوه، چې مقصد ئې د چترال دلارې ساتنه وه کومه چې د حربي نقطهٔ نظره ډېره اهمه بللے شوه، د دې نه راپه‌ ډېخوا چې په ایجنسی کښې څه هم سیاسي پېښې منځ ته راتلې، په خاص ډول کومې چې د پېرنګي دکنټي یا تاوان سره تړلې وې، په‌ هغوې کښې حکومت د یو فیصله کوونکي عامل کردار اداء کړلو.

دوه کاله پس یعني په ۱۸۹۷ء کښې د ایجنسي قبیلې او د صوبه سرحد یوه لویه برخه د حکومت خلاف راپورته شوله، چې دا پاڅون د پېرنګي په‌ دور کښې د قبائیلي علاقې د ټولونه لوئ پاڅون ؤ، دا چې د دې وجهې څه‌ وې؟ تراوسه پورې په پوره ډول نهٔ ده په ډاګه شوې د هغه وخت پېرنګي منتظمینو داسې ګڼله چې دا د افغاني افسرانو په‌ ډاډ د ملیانو د دسیسو (سازشونو) نتیجه وه. وروسته بیا ئې ځینې لیکوالو دا خیال جوړ شو، چې دا پاڅون په‌ اصل کښې یا خود فار ورډ پالیسي په مقابل کښې قبائیلي عکس العمل ؤ، او یا دا چې د بدلون کوم قوتونه د پېرنګي د راتلو سره منځ ته راغلي وو، د هغوې په مقابل کښې د هغه خلکو پاڅون ؤ، چا چې د روحاني تصوراتو په بنیاد (اساس) په راتلونکي وخت کښې په‌ پرېمانه خوشحالۍ او سوکالۍ عقیده لرله. دا ټول خیالونه په‌ خپل

ځای وزن لري. ولې دا به هم بې ځایه نهٔ وی چې د تېرو څو کلونو واقعاتو د قبائیلي ټولنې د روایتي جوړښت سیکولر طرزِ حکومت کمزورے کړو، او مذهبي مشرانو ته ئې دا موقع پهٔ لاس ورکړله، چې که په مستقل ډول نهٔ وی نو په عارضي ډول د هغه تحریک مشري پهٔ لاس کښې واخلي، د کوم مرام چې د قبائیلي ازادۍ بېرته حاصلول وُ.

د مَلک میهن او ریمزي رپورټ د هغه وخت نه لږ روسته لیکلے شوے دے، کله چې د پېرنګي حکومت او د دیر سوات او باجوړ د قبیلو تر منځ رابطه جوړه شوه، او بیا د یو بل سره ونښتل، په دې رپورټ کښې نهٔ یواځې دا چې د سنه ۱۸۹۷ء واقعاتو ته اشارې شوې دی په دویمه برخه کښې ئې د دې واقعاتو پوره تفصیل ورکړے دے ولې بیا هم د دې رپورټ هغه برخې د زیاتې دلچسپۍ وړ دی پهٔ کوم کښې چې د دې قبیلو د سماجي او سیاسي تنظیم ذکر راغلے دے

مَلک میهن او ریمزي د درې بنیادي قبیلو پهٔ حقله لیکل کړي دی.

۱۔ اکوزي یوسفزي: چې د دیر او سوات پهٔ زرخېزه ځمکه اباد دی.

۲۔ ترکلاڼي (ترکاڼي)، چې پهٔ باجوړ کښې مېشتهٔ دی.

۳۔ اتمانخیل: چې د باجوړ په جنوب کښې په یوه غریزه

پتې کښې اوسیږی .

د دې قبیلو جوړښت لکه د پښتنو د نورو قبیلو غونډې د پښتنې ټانګو په اصولو ولاړ دے ، یعنې د نسبونو یا خېلونو په بنیادی تقسیم شوې دی - په نظریاتی توګه دا جوړښت په مساواتو مبنی دے ، او ټول خېلونه یا افراد چې په شجره نسب کښې ځائې لری د مساوی مقام لرونکی دی - د قبیلې د غړو د مساوی حیثیت عملی مظاهره په جرګه سسټم کښې کیږی - جرګې متنازعه مسئلې هواروی . او د اجتماعی مفادو په لړکښې فیصلې کوی . دا سسټم د پښتنو په ټوله قبایلی پټی کښې موجود دے ، په ډېرو قبیلو کښې جرګې عموماً په سپین ږیرو مشتملې وی - خو په نظریاتی ډول د یوې قبیلې ټول نارینه وګړی د کلی یا خیل په جرګه کښې عملی دخل لری - په لوړه سویه ( level ) د څو خېلونو یا د ټولې قبیلې نمایندہ جرګه راغوښتل کیږی - او که چېرې وړینه مسئله د زیات اهمیت وړ وی - نو د متعلقه خېلونو یا قبیلې ټول غړی په دې جرګه کښې شرکت کوی .

د دیر ، سوات او باجوړ په قبیلو کښې چې تیوتاکلی وخت روسته د ځمکې د تقسیم کوم نا اشنا غونډې نظام موجود دے د هغې نه ډېر په ښه ډول د قبیلې د خېلونو او افرادو ترمنځ د مساوی حیثیت اظهار کیږی . د قبیلې د ټولې ځمکې نه هر یو خېل یا نسب ته خپله برخه (دفتر) حواله کیږی او بیا ئې هر خېل د افرادو په حساب په خپلو کښې وېشی . دا دفترې دیو تاکلی

وخت نه روسته بیا سرد وباره تقسیمېږی - چې دې ته "ویش" یا "خسپنې" وائی - د ځمکې د بیا بیا تقسیم نظام په نورو ځایونو کښې هم موجود وُ .

په نولسمه پېړۍ کښې د پېرنګی هند په ځینو ضلعو کښې د واکمنۍ د بدلون د نظام بنې نښانې معلومې شوېدی ، هم دارنګه د (Tentonic Nark Tenure) او د روس د نولسمې پېړۍ د کلیو د سرد وباره تقسیم د نظام سره پکښې پرېشان والے په نظر راځی - دا د ځمکې د بیا بیا تقسیم نظام د پېرنګی افسرانو او د ملکیت د تکامل د ادارو ذ طالبعلمانو د پاره د ډېرې دلچسپۍ وړ وُ - ځکه چې په دې کښې ضغوې ته د دې فکر په تائید کښې معلومات په لاس راتلل - د کوم په بنیاد چې دا وئیلې شی ، چې د ملکیت ډومبے شکل په هر ځای کښې اجتماعی وُ - او بیا وروسته ئې نجی شکل اختیار کړېدے - ولې بیا هم ویش هغه یواځینے نظام دے ، چې د ځمکې تقسیم پکښې د نسبونو یا خېلونو په بنیاد کېږی .

د ملک میهن او ږېږی د رپورټ یو په زړه پورې ارخ دا دے چې د ویش عجمله په لیکلی ډول یو بشپړ تفصیل وړاندې کوی . البته دا په یقین سره وئیل ګران دی ، چې د دوی دا دعوې ترکومه حده رښتیاده ، چې دا نظام د دیر ، سوات او باجوړ په ټولو قبیلو کښې موجود وُ - ځکه چې اکثر شواهد صرف په یوسفزو کښې د دې نظام نښې ورکوی ، خو په دې خبره کښې

شک نشته چې د بنوں د ضلعې د مروتو نه علاوه نور چرته هم په پښتنو قبیلو کښې د دې قسمه نظام وجود نه دے لرلے، دا نظام په مروتو کښې د خولې ویش په نوم یادیده، چې تقسیم به پکښې د خاندانونو ترمنځ د افرادو د شمیر په حساب کیده. او لکه د یوسفزو غوندې د نسب یا خیل په بنیاد نه ؤ، کله چې مروت د پیرنګی د جغ لاندې راغلل، نو خلکو ته په قانونی ډول د ذاتی ځمکې د لرلو او کانه کولو حق ورکړے شو او د دې نه علاوه زور ورو کورنو هم د تقسیم نه د سرا یستلو هڅه کوله، نو حکم د نولسمې پیړۍ په آخر کښې دا نظام ختم شو، د پښتو ضلعې په یوسفزو کښې هم د وخت د تیریدلو سره ورو ورو د دا نظام د منځه لاړو. اګر چې د ۱۹۳۱ء پورې د دې نظام آثار موجود وو. پیرنګی افسرانو نه غوښتل چې دا نظام جاری پاتې شی۔ ځکه چې د دې سره جګړې پیدا کیدلې، او په زراعت کښې چا پوله پیسه نه لګوله، او هم دا وجه وه۔ چې په رات شو ضلعو کښې هغوی دا نظام په مستقل تقسیم بدل کړو.

د پولې د هغې غاړې په یوسفزو کښې "ویش" د شلمې پیړۍ تر دیره وخته پورې ژوندے پاتې شو۔ د شپاړلسمې پیړۍ په آخره کښې چې کله یوسفزو د هغوی دا موجوده علاقې ونیولې۔ نو د هغوی د مذهبی مشر شیخ ملی په

مشرې کښې "وېش" منځ ته راغے - د دې ترشاه مقصد داؤ، چې د دغې وخت د لوئې معاشي ذريعې يعنې د ځمکې په حواله د قبيلې د ټولو خېلونو او افرادو ترمنځ مساوات وساتل شي . د پښتنو نورې اکثرې قبيلې په ښارو غرېزه علاقو کښې مېشته شوې او د ښارو وساتلو کار ئې شروع کړو خو يوسفزو د سمې په علاقه قبضه وکړله، د دغه ځائ‌ونو اصلي اوسېدونکي ئې يا وشړل ، او يائې د ځان ماتحت کړل او بيا ئې کر کروندہ شروع کړله ، د ښارو وساتلو په نسبت د کرکروندې د پاره د ځمکې نه زيات کار اخستل کېږي ولې دا ضروري نه ده چې د يوې علاقې د کروندې ټوله ځمکه دې يو لاس وي ، هواره او د اوبو لاندې ځمکه ښه فصل کوي خواره ځمکه د غرو د لمنې ځمکه او کانيزه ځمکه د کرکروندې له پاره ګرانه پرېوځي - د يوې قبيلې د غړو د پاره دا ممکنه نه وه - چې په يو وخت هر وګړے ښه او خرابه ځمکه په مساوي بلياد ويو ولري - د دې کړکيچ د حل د پاره - چې يو خېل يا فرد د تل د پاره د ښې يا خرابې ځمکې خاوند نه شي په ټاکلي وخت د ځمکې د تقسيم نظام وضع (جوړ) کړے شو .

وېش که په اصولي ډول هر څو ښه نظام وُ، خو بيا هم پکښې يو څه خامي موجودې وې ، لکه دا چې د چا به يو ځل ښه ځمکه ورسېدله، نو کله چې به د وېش وخت راغے ، نو هغوی به ورته غاړه نه اېښودله - او اکثر به خبره جګړې ته ورسېدله

همدارنګه د ځمکې په جوړولو او د هر وخت د پاره د ښه
فصل په جوګه کولو ، چا خپلې پيسې نه لګولې ، ځکه چې دا ځمکه
به د يو تا کلي وخت نه روسته د هغه د لاس نه وتله ، د
ملک ميهن او ريمزی په خيال دا انتظام د قبائيلی نظم و
نسق په حواله يو ښه مثال دے ، او د پښتنو د پاره
په دې اهم دے ، چې هغوئ د جنګ جګړې شوقيان دی
او دا انتظام ئې د دې شوق د پوره کولو د پاره زمينه برابروي
ولې ترڅو پورې چې د تمدن د پرمختګ تعلق دے نو
دا د ځمکې د تا کلي وخت نظام د انتهائي ضرورې نظامونو
د جملې نه يو نظام دے .

په دې وجه کيدے شي د قبيلو تر منځ د مساوات
ساتلو يوه ښه ذريعه وه ، خو د نولسمې پيړې د اخرې
او شلمې پيړې د لومړيه برخې د سماجی او معاشی
ودې په معيار پوره ونه ختله .

سرحدی پيرنګی افسرانو د پښتنو سياسی او سماجی
تنظيم ته په عمومې توګه جمهوري وئيل ، ولې دا تکے
هغوئ په د هرو مختلفو معنو کښې استعمالولو - د
يوې خوا نه د قبائيلی مساواتو اداري لکه جرګه او وېش
هغوئ ته د قبائلی تړون او نظم ونسق اهم عوامل
ښکاريدې . مثلاً ملک ميهن او ريمزی ليکي : چې هغه
نظم ونسق چې د کلي ټول وګړي په قابو کښې ساتي او هغه

مؤثر اختیار چې د کلي د معاملو او شریک مفاد په لړ کښې جرګې ته حاصل د ے ، پوره زره راسکون لري ، په دې کښې شک نۀ شته چې دا روحیه د اقتدار د هغه اوږد نظام پیدا وار دے کوم چې د عام خلکو سره مربوط پاتې شوے د ے ، او هم دا وجه ده ، چې دېو تاکلي وخت نه پس د ټولې قبیلې د ځمکې د وېش پیچلے نظام تر اوسه پورې رواج لري .

د بلې خوانه افسرانو هغه ادارو ته هم په ښۀ سترګه نۀ کتل - د کومو په برکت که یو طرفته د مساواتو نظام قایم وُ ، نو بل طرفته د دې قبیلو په څېنو علاقو کښې د قانون نه د سرغړونې او باچاګردۍ سبب ګرځېدلې وې - د قبایلي انتظام دنده چې د چا په غاړه وه ، د هغوئ د پاره د قبائیلي جمهوریت په ځائې اتوکراتیک سستم زیات بهتر وُ . د دې خبرې د ثبوت د پاره د هغه رپورټ یو څو جملې ذکر کوو - کوم چې د پیرنګي د دور په آخر کښې چاپ شوے دے " هغه اړے ګړے یا باچاګردي چې د وېنو د دښمنو او جمهوري تنظیم د کبله راپیدا شوے د ے ، د ترقۍ په لار کښې یو کلک خنډ د ے ، سرکاري افسران نۀ شي کولے چې د جمهوریت ټولو غړو ته ځان ورسوي " .

په دیر ، سوات او باجوړ کښې جمهوریت ته د څېنو اړخونو په حواله تغیر ورکړے شوے وُ ، اول خو دا چې په جرګه کښې د خبرو کولو حق هغه چا ته حاصل وُ - چا چې په دفتر کښې حصه لرله . د دې مطلب دا دے چې د چا چې ځمکه نۀ وه ، هغوئ د جرګې په

په معاملو کښې کار نهٔ شو لرلے، پهٔ دې بې جایداده خلکو کښې د غیرپښتون قبیلو او کسب ګرو نه علاوه هغه پښتانهٔ هم شامل وو، چا چې خپلې ځمکې خرڅې کړې وې، نو ځکه د دیر، سوات او باجوړ قبائیلي ټولنه پهٔ دوه برخو تقسیم وه، یعنې ځمکه لرونکې برخه او ځمکه نهٔ لرونکې برخه، دا نقطه د ملک میهن او ریمزې پهٔ نظر ثانی شوی اید یشن کښې ذکر شوې ده، "چې کله هم د دې علاقو د پښتني حکومت پهٔ لړ کښې د «جمهوري» ټکے استعمالیږي نو باید دا پهٔ نظر کښې وساتلے شي - چې اقتدار پهٔ بشپړ ډول د ځمکه لرونکي پښتنو پهٔ لاس کښې دے. بې ځمکې (فقیر) او کسب ګر د حکمرانۍ پهٔ کارونو کښې د رائې حق نهٔ لري. او پهٔ عملي توګه ئې حیثیت د غلامانو دے".

اګر چې دا د سماجي او سیاسي امتیاز یو ځینې شکل نهٔ دے پهٔ خصوصي ډول پهٔ یوسفزو او ترکلانو قبیلو کښې د خانانو (مشرانو) د حیثیت پهٔ حواله قبائیلي جمهوریت یو بل خاص تغیر لري. د دیر، سوات او باجوړ خانان د زیات سیاسي قوت او ډېرې ځمکې د لرلو له کبله زیات زورور وو (تر ډېره حده اوس هم دی) نو ځکه ئې د جاګیردار غوندې مقام موندلے وو. د ډېرو یکښې لویې لویې قلاګانې او ملاتړ وو. او خپل دولت به ئې د خپلې ډلې د قوي کولو او د خپل قوت د زیاتولو د پاره استعمالوٚ پهٔ دې لحاظ پهٔ دیر، سوات او باجوړ کښې دوه قسمه سماجي پرتونه موجود وو، یو د ځمکه لرونکو او ځمکه نهٔ لرونکو ترمنځ

او بل د خانانو او د هغوئ د ډلو ایزو ترمنځ ـ په دې لړکښې یوسفزئ او ترکلاني قبیلې په دې لحاظ د نورو پښتنی قبیلو په نسبت زیات ځانګړے شکل لري ـ چې دا نورې قبیلې زیات مساویانه سماجي جوړښت لري . او د سیاسي پرتو نو نه ترډېره حده ازادې دي .

د مختلفو علاقو د خانانو زور او اثر هم یو شان نه وُ ـ کله چې ملک میهن او ریمزې خپل رپورټ لیکلو ـ نو ځینې کسان لکه د دیر او ناوګۍ خانان پکښې تش په نوم د یوې لوئې علاقې حکمرانان وو ـ او ځینې لکه د سوات خانان پکښې ترخپلو ډلو پورې محدود شوي وو ـ او په حقیقت کښې ئې حیثیت د یو با اثره ملک نه څهٔ لږ غوندې زیات وُ ، د سوات او دیر په زیاتو برخو کښې یو خان هم داسې نهٔ وُ ، چې بل ئې منلے نهٔ راتلو ، د قبائیلي سیاست عمومي شکل داسې وُ ـ چې پهٔ هر ځائې کښې د مخالفو خانانو د ډلو ترمنځ رقابت روان وُ ـ د دې رقابت په حقله د بشر پوهنې د عالمانو ترمنځ اختلاف موجود دے . د نارویې د عالم فریډرک بارتھ په خیال د دې رقابت په برکت د خانانو پهٔ زورکښې توازن منځ ته راځي ، او یو خان هم د دې جوګه کیدلے نهٔ شي ـ چې د تل د پاره په خپلو مخالفینو برے ومومي . ځکه چې کهٔ چرې د هغهٔ قوت ډېر زیاتیږي ـ نو بیا مخالف خانان په خپلو کښې یو ځای کیږي ـ او پهٔ شریکه هغهٔ ته ماتې ورکوي ، او همدارنګه یو کمزورے خان د بل خان سره د زورور خان د مقابلې د پاره

یو ځای کېږی ، اکبر ایس احمد د توازن د دې رجحان د فکر سره کلک اختلاف لری ، هغه وائی ـ چې د خانانو او د هغوی د مخالفو ډلو ترمنځ د توازن هیڅ څهٔ فطري رجحان موجود نهٔ وُ ـ خانانو کوښلے شول ، او کهٔ موقع په لاس ورغلې نو اکثر ئې کړی هم دی چې خپل مخالف د تل د پاره شړونکے کړی ، .

د مکمیهن او ریمزې رپورټ د دیر، سوات او باجوړ د سیاسی رقابت په لړکښې د هر په زړهٔ پورې معلومات وړاندې کوی . اگرچې حتمی نهٔ دی ، ډله سسټم د خانانو په بنیاد (اساس) ولاړ وُ . په اکثر کلیو کښې موجود وُ ـ او په هر وخت کښې به یوه یا بله ډله په اقتدار کښې وه ـ خو په ځینو وختونو کښې داسې هم شوېدی ، چې د حکمرانې ډلې مخالفو د هغې د وفادارو یوه برخه د ځان سره ملګرې کړېده ، او په اقتدار ئې قبضه اچولې ده ، بیا هم د کلیو په سویه (Level) د مخالفو ډلو ترمنځ د اوږد وخت د پاره د توازن د رجحان امکان پاتې شوېدے ، ځینو ډېر و زور ور خانانو نسبتاً د زیات وخت د پاره خپل غالب حیثیت برقرار ساتلے دے ، چې د عمرا خان جندولی ژوند ئې یو ښهٔ مثال دے ـ هغهٔ د ۱۸۷۹ سنه او ۱۸۹۴ سنه په منځ کښې د زور ور مخالفو اتحادونو باوجود د دیر خان زغلولے دے ـ او د دیر او باجوړ اقتدار ئې په لاس کښې اخستے دے . د هغهٔ زور هغه وخت مات شو ـ چې کله د پیرنګی مخالف شو او د ۱۸۹۵ سنه د چترال ریلیف مهم په نتیجه کښې شړونکے شو ـ د دیر خان په ځای ستو .

او بلجوړ په ورو ورو خانیو کښې تقسیم شو، دا باید ذکرشي چې د عمراخان قصه استثنائي بڼه (Feature) لري. یو څو نورو خانانو په خپلو علاقو کښې په دغه اندازه زور پیدا کړے دے، او پاتې لوی اکثریت د مخالفو د مخنیوی د پاره د نورو خانانو سره اتحادونه کړیدی، دکله نه چې پیرنګے په مقامی سیاست کښې دکوټو وهلو جوګه شوے دے نو په عمومی ډول ئې د خانانو د رقابت چرچه کښېنولې ده خانان په دیر. سوات او باجوړ کښې د سیکولر سیاسی مشرۍ نمایندګان وو، البته یو بل قسم مشرې هم موجوده وه۔ چې واګې ئې د مذهبی کسانو په لاس کښې وې، د سرحد پیرنګی افسران په قبائیلی علاقو کښې د مذهب داثر او مذهبی جنونیت دکبله ډیر په تشویش کښې وو۔ ځکه چې د ۱۸۹۷ء سنه کښې په پاڅون کښې دلیونی فقیر یا نورو داقسم خلکو د کردار او اثر یوه ترخه تجربه ئې شوې وه، ولې بیا هم د ملک میهن او ریمزې د بیانونو نه داپته لګی، چې په قبائیلی ټولنه کښې د مذهب د اثر په حقله د یوې کوتلې رائې په جوړولو کښې هغوئې د ستونځو سره مخامخ وو۔ لکه هغوئې لیکی چې :

" په لومړی نظر کښې سړی ته داسې ښکاری۔ چې دا خلک مذهبی تنګ نظره دی ولې په حقیقت کښې د مذهب اثر لږ دے۔ په مجموعی ډول دا خلک مذهبی لږ او وهم

پرست زیات دی ، او ملایان هم د دې وهمونو په بنیاد داخلک د هرې په اسانه په خپل لاس کښې اخلی .

د خلکو رښتنے مذهب پښتونولی ده . . . . . دا ناقابل تعریف نوم د منې بد ې یو ې ناقابل فهم ضابطې ته ورکړے شوید ے «که چیرې ملا ترې یوطرفته شی ، نو د د ې خلکو سره د هر په اسانه ژوند کېدلے شی ـ ولې کله چې د دوئ اجتماعی جنونیت راپار شی ـ نو بیا دې ترې خدای امان وکړی »

د مک میهن او ریمزې دا تجزیه سرې ته نااشنا غوندې ښکاری ، چې د یو ې خوانه دا خلک ژور مذهبی رجحانات نه لری ـ او په انفرادی دول جنونیان نهٔ دی ، او د بلې خوانه مذهبی مشران د دوئ د وهمی فطرت په استفاده په دوئ کښې په اسانه اجتماعی مذهبی جنونیت پیدا کوی ـ خو کېدلے شی چې دا په ظاهره پېچلې نتیجه ګیری د نورځه نه علاوه د هغه ویرې اظهار وی ، کومه چې د افسرانو په زړهٔ کښې د ١٨٩٦ئ د واقعاتو د تکرارېدو په لړ کښې موجوده وه ، په قبائیلی تولنه کښې د مذهب او مذهبی مشرانو په اهمیت د پوره پوهې د پاره د یو ې خصوصی تجزئې ضرورت د ے .

په د ې قبیلو کښې څو قسمه مذهبی عناصر موجود وو .

لومړے: د بزرګانو اولاد ـــ د دوی د ژوند د ضروریاتو دارومدار په مذهب نهٔ ؤ ـ ولې خلکو ورته د قدر په سترګه کتل . او د ثالثئ د پاره به ئې راغوښتل .

دویم ـ د کلي ملایان :ـ دوئ نه ورځني مذهبي چارې لکه امامت، د قرآن درس او مذهبي رسمونو سرته رسول ورپه غاړه وي. د کلي ملاته خلکو درناوې ورکاوه، ولې د بهر لوري امتيازي مقام ئې نه لرلو، او د قبيلې په اهمو مسئلو کښې ئې د بهر اثر نه ؤ.

دریم:ـ هغه کسان ور چې مک مهن او ریمزې ئې محض مذهبي مهم جو کمني او والي چې په دې علاقه کښې لکه د ماشو، میرو کرځي او په ټولو غلطو کارونو او زیاتو جرمونو کښې ککړ وی. په دومره کښې شمېر کښې د مهجو موجوديت او د هغوې له خوا په لویه پیمانه اړی کړی او جرمونو ته د خلکو لمسول مبالغه معلومیږی. په دې کښې شک نشته چې د دې دلي زیات کسان د پېرنګي حکومت سخت مخالف وو خو په فعال دول ئې په هره موقع مخالفت نه دے کړے. د مثال په دول پلم بابا د بر جساس بنیاد پرست ؤ. او د چترال ریلیف په وخت کښې د دې د پاره د ځمکي د ننه په یوه کوټه کښې چیله بشرے ؤ، چې د کافرو بوې هم ورباندې ورنه شي. خو بیا هم مکمهن او ریمزې دار اپورټ د ۱۸۹۷ء نه یو څو کاله وروسته لیکلے دے، نو دا امکان نشته چې تر دغه وخته مذهبي عناصرو د اړی کړی زیات توان پیدا کړے وی.

د قبائيلي بحران د دوړنه علاوه په عامو حالاتو

کښې کړه ځوک د مذهبی طبقو اثر نه د هر زیارت والی، نو دا به لوستونکی بې لاري کوی. اګرچې ځنې مذهبی عناصر داسې وو، چې نیم یا پوره سیاسی اهمیت یې ضرور حاصل کړے وُ. د دوې په جمله کښې د سوات د اخون (سیدو بابا) نوم د ټولو لومړے راځی. د دے د نولسمې پېړۍ په نیمائي کښې بزرګ مشهور شوے وُ - او د سرحد په پورې غاړه قبیلو کښې ئې د هر زیارت مریدان پیدا کړی وو - اګرچې اخون تر ډېره حده ځان د قبائیلی سیاست نه یو طرف ته ساتلے وُ. او په سوات کښې یې سیکولر سیاست هم ترلاسه کړے نهٔ وُ - ولې بیا هم خلوښت کال د دې علاقې مؤثر شخصیت وُ - د هغهٔ مذهبی مقام هغه د دې جوګه کړے وُ، چې د ډلو تر منځ شخړې هوارې کړی، او انګریزنګی حکومت له ارخه د مداخلت د خطرې په ربنا کښې د سوات په خلکو کښې اتحاد پیدا کړی. د امبیلې د ۱۸۶۳ء د مهم په دوران کښې هغهٔ د حکومت خلاف نېغ په نېغه قدم پورته کړو، او خپل مریدان ئې د بونیر د خلکو او د تش په نوم هندوستانی جنون پرستو په مرسته کښې و جنګول، ولې اخون نهٔ خو بخپله جنون پرست وُ، او نهٔ د حکومت سخت مخالف وُ، او تر څو پورې چې ئې په سوات کښې د مشرئ رول کاوهٔ، نو پالیسی ئې دا وه، چې د حکومت سره دا نښتې نه ځان وساتی، ییرنګی ته هم هغه په سرحد د امن او استحکام یو علامت ښکاریدهٔ، اګرچې کله کله به د هغهٔ د ژوے مذهبی

اثر د وېرې په تشویش کښې هم وُ.

په حیثیت د یو سلاکار او ثالث اخون د سوات په خلکو کښې د سیاسی اتحاد تیره کښېښودله په داسې حال کښې چې د هغهٔ د سیاسی شهرت وجه د هغه بزرګی وه، خو دې دپاره چې روحانی مقام یې متأثره نهٔ شي هغه د سیاسی مشرې په قایمولو کښې ډېر محتاط پاتې شو، ولې بیا هغهٔ دا هڅه وکړله، چې خلك د هغهٔ خوښې د سوات د حاکم په ډول قبول کړي، خو دا بېله خبره ده چې کامیاب نهٔ شو. په ۱۸۷۸ء کښې د اخوند د وفات او مؤثر کـدې نشین د نشتوالی له کبله د سوات سیاست یو ځل بیا د سوات د خانانو د رقابت مېنکار شو، د سوات د سیاست دغالا ترغه کېدو عمل هغه وخت نور هم مخ په وړاندې لاړ، کله چې په ۱۸۷۸ء کښې د دیرخان د سوات د سبې اړخ زیاته برخه ونیوله او د پېرنګی حکومت خلاف قبائیلي پاڅون د ماتې سره مخامخ شو. د پېړنې د بدلون په وخت کښې د ریاست حالت په یو سرکاری رپورټ کښې څه داسې ذکر شوېدے "ډلایزې جګړې حسب معمول روانې دي او علاقه په داخلی ډول د ډېر خراب اړې ګړې او باچاګردی مېنکار ده".

کله چې د ملك مېهن لو ریمزې رپورټ چاپ کېدو، نو په هغه وخت کښې داسې څهٔ نښې په نظر نهٔ راتلې، چې کښې

اخون چې څه حاصل کړي وو، هغه عارضي نه وو ، او يا په راتلونکې وخت کښې په کار راتلے شول د هغه د ځلورو لمسو "چې د احترام په توګه ورته خلکو مياڼ ګلان وئيل" په حقله ويلے شول، چې هغوئ د لوبو شوقيان دی ، او د سماجي اثر په حواله ئې د نيکه ګټه بايللې ده . اګرچې د ميراث په ډول ورته د روحانی اثر يو برخه پاتې ده ، د ۱۸۹۷ء په پاڅون کښې د هغوئ کردون په هغوئ په ظاهري ډول بده اغيزه کړې وه ، او داسې هيڅ څه امُيد نه وُ پاتې ، چې د دوئ يو تن يا دوئ ټول په شريکه به چرې هم په سوات کښې سياسی اهميت پيدا کړي ، خو بيا هم د مياں ګلانو د جلې نه ديو په مشرۍ کښې په راروانو پنځه ويشت کلونو کښې د سرحد په هغه څاړه قبيلو کښې يو د ډېر اهم بدلون منځ ته راغے ، يعنې د باچاګردۍ او ټوله ايزو جنګونو علاقه د سوات په يو مرکز لرونکې او پائيدار رياست بدله شوه .

د هغه سرې نوم چا چې دا بدلون راوستو ، ګُل شهزاده وُ . په دې لړکښې د اخون د لمسی په حيثيت د روحانی مقام لرلو نه علاوه د هغهُ خپلې زيرکه يعنې د وخت په نبض د لاس اينبودلو صلاحيت هغه د دې جوګه کړ ، چې په سوات کښې خپل اقتدار قائم کړي . د دې د پاره هغهُ ته نه يواځې د نورو سياسی مشرانو سره ، بلکې د خپلو نږدې خپلوانو يعنې

میاں گلانو سره هم مقابله کول وو، د هغه روبېه کار داؤ
چې په خپله کورنۍ کښې د رقابت امکانات ختم کړي، نو ځکه ئې
اوّل د خپل تره ځامن ووژل، د پښتنو په معاشره کښې
د تره ځامن روایتي رقیبان وي، د گل شهزاده ئې ورور وُ
چې هغه ورسره د څو کلونو پورې د تضاد او اختلاف په
شکل کښې روان وُ، هغه دا نه غوښتل چې د سوات د
یوسفزو مِشرۍ د خپل ورور سره شریکه کړي، صرف په
هغه وخت کښې به ئې ورسره اتحاد کولو، کله چې به د
یو شریک مقصد لپاره د شریک سیاسي دښمن خصوصاً د
دیر د نواب په مقابله کښې ودرېدل وو. کله چې په ۱۹۱۸ئه
کښې د هغه ورور د دیر د نواب خلاف په جنگ کښې
مړ شو، نو هغه ته د سوات د یوځینې حکمران جوړېدو او
د ریاست د مستقل استحکام د یقیني کولو د پاره لاره هواره
شوه، په ۱۹۲۲ئه کښې گل شهزاده د دیر نواب د تل د پاره
د سوات نه وویستلو، او خپل پوزیشن ئې کلک کړو، د دې
نه روستو هغه د هر په چټک ډول ډېر ساده خو ډېر
مؤثر چال په ذریعه د سوات ریاست ته پراختیا ورکړله.

میاں گل ډېرې کټې د وسلې د زور په ځائې په
خبرو اترو حاصلې کړې. ډلهایز احساسات چې په یوسفزو
کښې څومره دی د ومره په بل چا کښې نشته، او همدا
خصلت وُ، چې یوسفزي ئې په اسانه د میاں گل په جال

ونښلول، میاں ګل پخپله د جرګې په معاملو اود مقامي شخړو نه ځانته په ګډه ایستلوکښې دومره ماهر و، چې په ټول سرحد کښې ئې ساری نه و ، دهغه طریقه داوه ، چې کومې علاقې ته به ئې سترګې خوږې کړې، نودهغې دیوې ډلې سره به ئې ځان ملګرے کړو، او ددې سره به دغه ډله دومره زور ور شوه، چې مد مقابل به ورته میدان په رضا پرېښود او بالاخره په دغه ځاې کښې به ئې د خپلې ډلې په امداد، چوڼۍ جوړې کړې اوخپل کاردار به ئې پکښې کښېنول .

## د میاں ګل شجرهٔ نسب



په دې طریقه ګل شهزاده د ډله ایزو مخالفتونو په استفاده په سوات اوخواوشا علاقو کښې خپل سیاسی مقصدونه حاصل کړل، او دیو داسې ریاست د جوړولو جوګه شو، چې د سرحد د پورې غاړه قبیلو د پاره ښځې نا اشنا وُ، د دې کامیابه او د سرحد په یوه اهمه برخه کښې د استحکام قایمولو په نتیجه کښې پیرنګی حکومت هغه په رسمی ډول تسلیم کړ، او په لمللنه کښې ئې د والی سوات خطاب ورکړو.

والی سوات یو جابر اصلاح کوونکې (Reformer) وُ. د هغهٔ اقتدار د سوات په ټولنه او سیاست کښې ژور بدلونونه راوستل، هغهٔ په ټول ریاست کښې چوکۍ جوړې کړې، او د ټیلیفون او سړکونو په ذریعه ئې دیو بل سره وتړلې او انتظامی اداره ئې قایمه کړله، هغهٔ د هغه علاقو د قبیلونه وسله غونډه کړله کومې چې د هغهٔ د اختیارلاندې وې، یو با قاعده فوځ ئې جوړ کړو، او په ځنګ کښې ئې ورسره غیر رسمی ملیشیا ودروله، د دې اقداماتو سره ډله ایزې شخړې پای ته ورسیدلې، او د خانانو زور کم شو، د ویش نظام ئې هم ختم کړو او د معاشی ودې سکولونو او هسپتالونو جوړولو پروګرام ئې شروع کړو، په تېزۍ سره د سوات د ریاست په وجود کښې راتلل او د والی سماجی، او سیاسی اصلاحات د ګاونډی قبیلو د تاریخ سره تر ډیره حده په تضاد کښې وُو. د دې قبیلو سیاست او

سماجي ژوند په شلمه پېړۍ کښې هم په هغه ډول تيا تې شو لکه څنګه چې په نولسمه پېړۍ کښې وُ، د دير نواب اګر چې لکه د والی سوات تسليم شوے حکمران وُ، خو د خپلو سرحدونو په دننه قبيلو ئې قابو تش په نوم وه، او د يوې کوټلې انتظامي د قايمولو د پاره ئې پوره هڅه ونه کړله، په باجوړ کښې د خانانو او د هغوئ د ډلو ترمنځ شخړې هم دغسې جارې پاتې شوې، په دې لړ کښې د خار د خان او د ناوګۍ اوبزه دشمنی د ذکر وړ ده، چې په سنه ۱۹۳۰ء کښې ئې د خونړو جنګونو شکل اختيار کړو، په دې دور کښې اتمانخېل د تنظيمي نښتوالی او خپل کلک جمهوري کردار په حواله د توجه وړ پاتې شو.

داقبيلې چې د شلمې پېړۍ په پيل کښې د دير، سوات او باجوړ قبيلو په نوم ياد ېدلې، نن د سياسی حالت په حواله د يو بل سره توپير (فرق) لري، او وجه ئې تر ډېره حده داده چې دوئ د سماجي ودې د پاره بېلې بېلې لارې اختيار کړې وې، کله چې د پاکستان حکومت په سنه ۱۹۶۹ء کښې د پيرنګيانو نه د مالاکنډ ايجنسۍ واک اختيار واخستلو، نو يو څو بنيادی بدلونونه ئې وکړل، د سوات رياست د پاکستان سره الحاق وکړو، د والی په مشره کښې ئې د پاکستان ائين خپل ومنلو، او د وفاق مقننه ادارو ته ئې دا اختيار ورکړو چې کله چرې هغوئ غواړي، نو په سوات کښې هغه قوانين عملی کولے

شی کوم چې د نورې ملك د پاره جوړې وی

په سنه ۱۹۶۹ء کښې د سوات ریاست ختم کړے شو، او د دې نه راپه د ښخوا هم هغه انتظامی جوړښت لرې، کوم چې د پاکستان په نورو ضلعو کښې موجود دے. البته د والی اولاد خپل لوړ حیثیت برقرار وساتلو او سیاسی قیادت ئې په خپل موټی کښې پاتې شو. دیر هم د سنه ۱۹۴۷ء نه وروستو د پاکستان سره الحاق کړے وُ، ولې د دغه ځائې انتظامی کمزورې او عدم استحکام، او همدا رنګه د نواب او د سیاسی حکامو تر منځ خرابو تعلقاتو خبره دې ته ورسوله چې د شلمې پېړۍ په سپږمه لسیزه کښې حکومت په تدریجی ډول د دغه ځائې کنټرول په خپل لاس کښې واخستلو، د باجوړ ترکلانی او اتمانخېل په رسمی (اداری) ډول د حکومت نه ازاد پاتې شو. په سنه ۱۹۷۰ء کښې هغوئې ته د ایجنسۍ شکل ورکړے شو، په دې ډول زړه مالاکنډ ایجنسی دالې دوه ښلې شوه، چې دیر او سوات په جزوی ډول د راتلونکی ضلعې وګرځېدلې چې په مالاکنډ ډیویژن کښې شاملې دی، او باجوړ ته دیوې بېلې ایجنسۍ شکل ورکړے شو.

د انتظامی بدلون سره سره معاشی بدلونونه هم منځ ته راغلل. د رابطې د زیاتېدو او د روزګار د موقعو د پرمختلو د اثر لاندې د اتولې قبیلې د قومی معیشت سره وتړلے شوې. د هغوئې د ډېرو کړی د پاکستان ښاری مرکزونو ته د روزګار د پاره لاړل.

یا ئې د کلف د ریاستونو په لور کوچ وکړو، ځینو یکښې د تجارت یا ټرانسپورټ کار ته ګوتې واچولې، د سیلانو د پاره سوات د ملک د ټولو نه زیات د توجه ور ځائې جوړ شو، او د مارکیټ په حواله د کړکوندې د پاره سنهٔ علاقه ومنلے شوه، حکومت په دې ځایونو کښې په دې غرض د ترقۍ سکیمونه شروع کړل، چې دا قبیلې د سیاسي او معاشي ترون په ذریعه قومي وندرته راولې نزوینلے شو چې د ملک میهن او ریمزې د رپورټ د وخت نه وروسته د دیر سوات او بلجوړ د قبیلو په ټولنو او سیاستونو کښې څو اهم بدلونونه راغلي دي. د سنه ۱۹۶۱ء د قبائیلي ټولنې او د ننۍ ټولنې د مقائیسې په حواله دا رپورټ د پوره زړه راښکون وړ دے. په دې رپورټ کښې د سیاسي او سماجي جوړښت په لړکښې داسې ارزښتناک معلومات وړاندې شوېدي، چې په څوالحاظه د ځغه پښتنو قبیلو سره فرق لري کومې چې د پښتنو د قبائیلي پټۍ په نورو برخو کښې اوسېدلې، هم دا رنګه د ځغه واقعاتو تفصیل هم لري کوم چې د شمال مغربي سرحد په اهمو برخو کښې د تاریخ په یوه نازکه مرحله کښې شوي وو، د دې نه علاوه په ضمني ډول د ډیرې د بدلون په وخت کښې د سرحد د افسرانو روئې او متعلقه مسئلې هم په ګوته کوي، هم دا وجه ده چې د مک میهن او ریمزې رپورټ اوس هم نوې د لومړې چاپ نه اتیا کاله پس د لوستلو د پاره د اهمیت وړ دے.

اوس هم چې کوم کتاب چاپ کېږي. دا په اصل کښې د ملک میهن

او ریمزې د رپورټ هغه رومبے ایډیشن دے کوم چې په ۱۹۱۰ء کښې چاپ شوے وُ. دویم ایډیشن لفټننټ کرنل ار۔ ایل کینوډین په نظر ثانی او ځینو اضافو سره په ۱۹۱۶ء کښې چاپ کړے وُ ۔ دا فیصله شوې وه چې د نظرثانی شوی او ترمیم شوی رپورټ په ځای اصلی رپورټ بیا چاپ شی ۔ ځکه چې دا ترمیمونه او اضافی نه خو ډیرې ژورې دی او نه د ډیرې دلچسپی وړ دی ۔ په اضافو کښې زیاتره د ۱۹۱۰ نه تر ۱۹۱۴ء پورې ورځنۍ قیصې د رپورټ د تاریخی برخو سره تړلے شوی دی او ډیر وړوکے باب په مالاکنډ کښې د فوځی قوت بحثله دے ، د ۱۹۱۶ء د رپورټ یو څو د دلچسپۍ وړ باڼې ، چې د ۱۹۱۰ء په رپورټ کښې شاملې نه وې په دې ایډیشن کښې په مناسبو ځایونو کښې ځای کړے شویدی ، د رومبی او دویم ایډیشن په منځ کښې د تفصیل په لړ کښې ډیر زیات فرقونه موجود دی خو که د دې ټولو تنقیدی جایزه واخلو نو دا ایډیشن به هرومرو ډیر زیات دروند شی .

د مک میهن او ریمزې د رپورټ په دوباره چاپ کښې د مدیر مقصد دا دے ، چې څومره کیدلے شی نو دا رپورټ دې د دې دور د لوستونکی د پاره روان او ساده وی ، بابونه او واړه سرخطونه ئې دوباره تنظیم شویدی ، ځنې باڼې پکښې د نوی سره ترتیب شوی دی ، او ځینې پکښې د چاپ نه بهر کړے شویدی ، هم دارنګه هغه اوږدې ضمیمې چې په قبائیلی

شجره نسب مشتملې وی هم نه دی شاملې کړے شوې، د اداري مداخلت یا په اصل متن کښې سمون یا بدلون په قوسونو کښې بند ښودل شوے دے، هغه لمن لیکونــه (Foot Notes) چې په اصل متن کښې راغلی دی د ستورې دولې نښې (Asterisk) په ذریعه په نښه کړے شوی دی، او کوم چې مدیر ور اضافه کړې دی، هغه د هندسې په ذریعه په ګوته کړے شوې دی. په دې حیله چې د ادارې دخیلې رائې په ورشاملولو کښې د ډیرې زیاتې ازادۍ او خپلې خوښې نه کار نه دے اخستے. د دیر، سوات او باجوړ میځله د ملک میهن او ریږې رپورټ د صوبه سرحد د پېښور د قبائیلی چارو د تحقیقی سیل د سیورۍ لاندې دوباره چاپ ته وړاندې کیږی

زه غوارم چې د صوبه سرحد د قبائیلی او کورنو چارو محکمې د ډپټی سکتر محمود خان شکریه ادا کړم چا چې د دې کار د پاره زه چمتو کړم، همدارنګه د قبائیلی چارو د تحقیقی سیل د تحقیقی افسرانو غلام صابر او حاجی اکبر جان هم مننه کوم، چا چې زما سره تر ډیره حده مرسته او کمک وکړو.

(ار. او. کرسټنسن)

پېښور مارچ سنه ۱۹۸۱ء

# سریزه

د هند د حکومت د خواست سره سم ما ځان وکړولو چې د الماڼغیلو په شمول د دیر، سوات او باجوړ د قبیلو په حقله رپورټ جوړ کړم، او د شمال مغربي سرحد د پولې د هغې غاړې د قبیلو د مفصل رپورټونو په سلسله کښې چې کوم کار روان دے هغه سرته ورسوم.

دا څه آسان کار نه وُ، ځکه چې د دیر، سوات او باجوړ جغرافیائي شرائط (حالات) ښخوبن سبا د خاص قبیلو د حدودو تعین کوی او نه د خاص خانیو یا مقامی انتظامی تقسیم پولې جوړوی، هم په دې وجه په دې موضوع د دغه سرخطونو لاندې کارکول ګران وو، دا هم مشکله وه چې هره قبیله لکه اکوزئي یوسفزئي، ترکلاڼي وغیره په جدا جدا ډول وڅیړل شی، دوئ د کښې او تاریخ په حواله یو بل ته دا سې ورته نښوتي دی، او سماجي اقدار، ضابطې او رواجونه ئې دا سې پرشان دی، چې که چرې مونږ ئې بېل بېل ذکر کړے وے، نو د هغه چارو په لړکښې به بې ځایه تکرارونه راغلي وو، کوم چې په دوئ ټولو کښې په یو ډول موندلے شی.

دا رپورټ د جغرافیائي ډکشنرۍ د یوې برخې د پوره کولو په غرض نه دے لیکلے شوے په دې کښې معلومات په عمومي ډول وړاندې کړے شوي دی، او د قبیلو او افرادو د

تاریخ نه علاوه پکښې نورو ورړو تفصیلاتو ته هم توجه نهٔ ده ورکړے شوې .

د ایجنسۍ د دفتری ریکارډ نه علاوه د دې رپورټ د پاره د دې لاندې لیکونو نه استفاده شوې ده .

1 – Hasting's Peshawar Gazeteer
2 – Belleu's notes on the yousafzai
3 – Raverty's Notes on Afghanistan.
4 – Peshawar district Annual Political reports. سنه ۱۸۹۳ء — سنه ۱۸۹۴ء
5 – Gazetteer of districts adjoing the routes Fallowed by the chitral relief expedition of 1895.
6 – Paget and Mason's Frontier Expedition's.
7 – Punjab census Report 1881.
8 – Akhund Darweza baba's tawarikh and other vernicular works.

اے . ایچ مک میهن .
پولیټیکل ایجنټ دیر سوات او چترال .
مالاکنډ .
۲/ اپریل سنه ۱۹۰۱ئه .

د دیر، سوات او باجوړ په حقله رپورټ چې
ورسره اتمانخېل او سمرانبزي هم شامل دي.

# لومړۍ برخه

په دې رپورټ کښې د چترال نه علاوه د نورو هغه ټولو علاقو د پښتو قبیلو په حقله معلومات وړاندې کړې ی کومې چې نن سبا د دیر، سوات او چترال په ایجنسۍ کښې شاملې دي، چترال او د هغې غیر پښتون قبیلې د دې رپورټ د خادرنه بهر دي- خو بیا هم د ځینو غیر پښتون قبیلو لکه د سوات، کوهستان د کاروې او تورموال او د دیر کوهستان د بشکرې په حقله په لنډه توګه ذکر شوے دے.

هغه سیمې چې د دې لیک د پاره په نظر کښې نیولے شوې دي، دیر، سوات، باجوړ د اتمانخېلو علاقه او سمرانبزي دي، کومې قبیلې چې په دې علاقو کښې میشته دي، هغه د اکوزي، یوسفزي، ترکلاني او اتمانخېلو نه عبارت دي او د سمرانبزي ټولنه غیر متجانس ده، په دې علاقو کښې غیر نسلونه لکه ګوجر وغیره او مذهبي کورنۍ چې ورروسته به یې ذکر راشي، ځای په ځای خواره واره آباد دي.

دا ممکنه نه ده، چې په دیر، سوات او باجوړ د بېل

بېل سرخط لاندې بحث وشي ، ځکه چې دا نومونه نن سبا د يوې خاص قبيلې يا خانۍ يا انتظامي تقسيم د سرحدونو تعين نه کوي . د مثال په توګه دير لو سوات د يوې قبيلې يعنې اکوزي يوسفزو په لاس کښې دي ، او باجوړ د ترکلانو وطن دے اوس چې څه ته د ديرخانۍ وائي هغه د دېر نه علاوه د سوات يو برخه او د ترکلانو د خاورې جندول ، بروول او ميدان هم په بر کښې نيسي .

# جغرافيائي تفصيل

په دې رپورټ کښې چې د کومې علاقې په حقله بحث شوے دے د هغې رقبه (۴۰۰۰) مربع ميله او ابادي ئې ۲۴۰۰،۰۰۰ ده .

د دې علاقې شمال خواته د هندوکو غرونو سلسلې د کومې چې د چترال د سيند جنوبي لوړه (Watershed) جوړوي . مشرق خواته ئې د سوات او اباسين د سيندونو د مينځ لوړه واقع ده ، جنوب مشرق ته ئې بونير دے ، په جنوب کښې ئې د پېښور ضلع ده ، جنوب مغرب ته ئې د مهمند وعلاقه ده او مغرب ته ئې افغانستان پروت دے ، چې د دې پولې په ترتيب د کونړ د سيند لوړه جوړوي . د ناوګه د يوې ورې ب

برخې او دا انتهائي خپلو د سيمې لوبه په جنوب مشرق کو تې
کښې دامبار سيند ته لوېږي ، همدا رنګه که د دې علاقــو
سره سمرانېږي هم شامل کړو کومه چې د غرونو په لمن کښې
د پښنور د هوارې سيمې په غاړه يوه نرۍ پټۍ ده، نو د
پلتې تورلي علاقې او به د رې سيندونو ته بهېږي . يعنې د
سوات د پنجکوړې او د باجوړ سيند (رود) ته. دا سيندونه
په خپلو کښې يو ځاى کېږى او يو سيند (د سوات سيند)
جوړوي ، کوم چې د آبازۍ په مقام د نرو نرو رودونو په
شکل کښې د پښنور هوارې ته داخلېږي .

دا علاقه زياتره غرېزه ده ، او ځاې په ځاې پکښې
زرخېزه سيمې موجودې دى ، چې ځينې ئې ډېرې پراخې
دى ، لکه د کوز سوات پنجکوړې او رود د خړې سيمې او ځينې
تنګې او چپر دى ، لکه د سيندونو د پورتنيو څانګو (وتونه
تنګى) ، د دې علاقې عمومي لوړوالے چې د سوات او
پنجکوړې د سيندونو د يو ځاې کېدو په مقام (۲۰۰۰)
فټه دے ، د شمال په لور په سمدستي ډول زياتېږى
چرته چې د غرونو څوکې د شمال مغرب د ۱۵۰۰۰ ، فټه نه
په شمال او شمال مشرق کښې ۲۰۰۰۰ فټو ته رسېږى۔

## سوات :-

د سوات سيند د هغه د ډنګو غرونو
د سلسلې نه راوځي کومه چې د چترال په پولې قرار لري.

د دې سیمې پورتنۍ برخه او د دې سیند ته د رابهېدونکو خوړکیو علاقه مخ په کښته تر الپین د کلي پورې را اوړ ده شوېده ، چې په عام ډول د سوات کوهستان په نوم یادېږي .

د الپین د کلي نه اصل سوات شروع کېږي، د دې ځای نه تر لنډاکی پورې (د چکدرې نه پنځه میله بره) بر سوات او لاندینۍ برخه د لنډاکی نه تر د قلنګۍ د کلي پورې په کوز سوات یادېږي ، د سوات د سیند ټول اوږدوالے د شروع کېدو د ځای نه تر د پنجکوړې سره د یوځای کېدو پورې (۱۳۰) میله دے ، باید د تلاش سیمه هم د سوات سره حساب شي ، ځکه چې تر دې وختونو پورې داد سوات برخه وه ، او اوس د دیر د نواب د اختیار لاندې ده ، دا سیمه د پنجکوړې د سیند سره د رود او پنج کوړې د سیندونو د یوځای کېدو د مقام نه څلور میله کښته تماس نیسي . که چرې سیندونو ته د لو بوورکوونکو لوړو د سرېنه حساب شي، نو د خاص سوات د علاقې اوسط پلنوالے دولس میله جوړېږي، چې د سیند په غاړو د زر خېزه ځمکې واړه او لوي ونډونه جوړوي ، په اوږدوالی دا علاقه خواوښاه اویا (۷۰) میله ده، د دې سیند ته ګلیشیر او واورې اوبه ورکوي، چې د اورې په موسم کښې تر ډېره حده بره راخېژي او په ژمي کښې کښته کېږي. ؟

ژمي په منځ کښې يکښې سړے تقريباً هرځائې پورې وتلې شي . د اپريل د مياشتې په منځ کښې دا سيند خېژي، او بيا ورباندې څوك پورې وتلے نه شي . او د ستمبر په منځ کښې ئې اوبه بيا پريوځي . دا سيند صرف يو پل لري يعنې د چکدرې هوائي پل چې په ۱۸۹۵ سنه کښې د چترال ريليف مهم په وخت کښې جوړ شوے ؤ . په خار او بټ خېله کښې خلك په کشتيو کښې پورې وځي راپورې وځي او په نورو ځايونو کښې په اوبو کښې د شنازونو نه کار اخستل کېږي .

په بر سوات خصوصاً سوات کوهستان کښې د دياړ د پېر لوئې لوئې ځنګلونه دی . کرونده په بر او کوز سوات کښې په لويه پيمانه کېږي، هغه ځکه چې د سوات د سيند او د هغې د وړو وړو نالو په ذريعه اوبه کېږي، د وريجو د پاره منلے شوې ده ، او دا وريجې په ځينو ځايونو کښې د ډېرې خوښولے شي . په لوړو ځمکو کښې باراني فصلونه لکه په سپرلي کښې غنم ، او وربشې او په مني کښې جوار سبه کېږي .

د سوات کوهستان اوسېدونکي توروال او ګاروي دي چې پښتانه نه دي او تردې وخته مونږ د دوي په حقله ډېر لږ معلومات لرو، کېدے شي چې دا د هغه نسلونو باقيات وي کوم چې په شپاړسمه پيړۍ کښې په سوات د يوسفزو د حملې نه وړاندې په کوز او بر سوات کښې

اباد وو، په عملي ډول دوئ ازاد دی، خو بیا هم کله
د یاسین او مستوج حکمراني کورنۍ کشوخت ته لږ غوندې
خراج ورکوي.

اوس په کوز او بر سوات کښې اکوزي یوسفزي آباد
دي. کوم چې د سیند په ښي غاړه اوسیږي، هغوی مونږ
د دیر د نواب په لاس کښې ورکړي دي، او هم هغه ته
خراج ورکوي په داسې حال کښې چې د چپ اړخ اوسېدونکي
هیچا ته خراج نه ورکوي.

کله چې د چپې غاړې (ښنډې) نه شروع شو، او مخ په
بره لاړ شو. نو د اکوزیه یوسفزو نسبونه په لاندې ډول دي.
رانیزي او خانخیل په کوز سوات کښې مېشته دي، او په بر
سوات کښې کوز سلوزي (ابا خیل او موسی خیل) بابوزیه او
بر سلوزیه (متوریزي، اذي خیل او جنکي خیل) اباد دي.
د رانیزو نه علاوه (پرته) دې نورو ټولو ته په یو ځای
بایزي وائي کله چې د ښي ښنډې ته پورته شو، او مخ په ښکته
لاړ شو، نو د نسبونو تقسیم به څه په دې ډول وي، شامیزیه
سبوجي، نیک پي خیل، او شموزي، او په کوز سوات کښې ادینزئي
ابازي، خادکزي، د دې دوه اخری نومونو نه علاوه دا نور ټول
په جمع په خونوزو یادیږي.

په دې ټول علاقه کښې ابادی سنه کښې د ه، پورتنۍ
برخه یعنې سوات کوهستان په خاص ډول زیاته ابادی (نفوس)

لري او د توروال او ګاروي قبيلو شمېر ۲۰۰۰۰ ته رسي ـ د کوزاو بر خاص سوات ابادي په اټکلي ډول (۱۵۰۰۰۰) ده، چې د ۳۰۰۰۰، نه تر ۴۰۰۰۰ پورې پکښې د جنګ ور سړي دي .

دا علاقه د کليو نه ډکه ده، چې ځينې پکښې کافي ډېره ابادي لري . د کوز سوات بنيادي کلي تيانه او اله ډنډ دي او په بر سوات کښې مينګوره چار باغ او منګلور د ذکر ور دي ، سيدو په بر سوات کښې د اخون (سيدو بابا) د مزار د کبله د اهميت ور ځائي دے ، چې ور وسته به ور باندې بحث وشي .

## دير :ـ

دير هغه علاقې ته وئيلے شي دکومې اوبه چې د پنجکوړې سيند او د هغې جوړونکې نا ليو ته عين تر هغه ځاى پورې پر يوځي ، چرته چې دا سيند د باجوړ د رود سره يو ځاى کېږي . د پنجکوړې د سيمې برنۍ برخه مخ پر کښته تر کسکر د سيمې پورې د پنجکوړه کوهستان يا کوهستانى ملېزۍ په نوم يادېږي .د دې کوهستان برنۍ برخې ته بشکر او لاندينۍ برخې ته شير ينګل وئيلي شي .

تر نزدې وختونو پورې پنجکوړه کوهستان د غير پښتنو قبيلو بشکر په لاس کښې وُ ، په دې کښې شک نشته چې دوئي هم لکه د سوات کوهستان د تور وال او ګروى قبيلو غوندې د هغه قبيلو باقيات دي ، کومې چې د پښتنو

د اقلو نه وراندې په دیر کښې مېشته وې، یوسفزو دیر په قلاره قلاره (تدریجي ډول) د دیر کوهستان په ګوزه برخه یعنې شرینګل باندې قابض شویدي او د دې ځائې اصلي قبیلې بر کوهستان یعني بشکر ته غونډې شوي دي. د هغوي بنیا دي کلي رشکوټ (پښتو، پترک) بسکوټ (پښتو بریکوټ) بیار او لاموتي دي. دوي به لومړے چترال ته خراج ورکولو، او په نزدې وختونو کښې ئې چترال او دیر دواړو ته خراج ورکړے دے، خو اوس صرف دیر ته خراج ورکوي، په بشکر او کشکر سیمو کښې د ګوجرو ابادي هم کافي ډېره ده.

د دیر نه شپږ میله لاندې د چتیاتن په مقام د دیر د کشکر رود او د بروال سیند پنجکوړې ته لوېږي. د کشکر د سیمې په برنۍ برخه کښې ګوجر اباد دي، په لاندینۍ برخه کښې ئې چرته چې د دیر ښار واقع دے اخونخېل او سپړي، اخون خېل د پاینده خېل، ملیزي یوسفزي قبیلې یو خېل دے، او د دیر د خان تعلق هم د دې قبیلې سره دے. د بروال سیمه چې اوس د دیر برخه ده، د ترکلاني قبیلې دیو نسب عیسيٰ زي په یوه برخه مشتمله ده د دیر علاقه د ځنډلن غونډې تو پیر (فرق) سره لکه د سوات غونډې په پوره ډول د اکوزي یوسفزي قبیلې په قبضه کښې ده، د چتیاتن نه مخ په کښته په چپه څنډه پاینده خېل

اوپه بنی څنډه سلطان خېل اباد دی ، بیا نو رښکته سلطان خېل په دواړو څنډو ملېشته دی ، د دې نه هم ښکته دواړو خواوو ته نصرالدین خېل او بیا وړېشي او ساخېل پراته دی .

د میدان سیمه د پنجکوړې د سیند په ښی غاړه د هغه ځای نه لس میله برې خواته واقع ده ، چرته چې دا سیند د رود د سیند سره یوځای کېږی ، او د ترکلاني قبیلې د اسمٰعیل زی نسب په قبضه کښې ده ، دا هم لکه د بړول غونډې د دیر یوه برخه ده ، د جندول سیمه هم د غښې ده ، چې عیسیٰ زی ترکلاني پکښې اوسېږی ، او د رود د سیند سره په هغه ځای کښې تماس نیسی (یوځای کېږی) د کوم ځای نه لږ ښکته چې دا سیند د پنجکوړې د سیند سره یوځای کېږی ، دا سیمه په ۱۸۹۸ء کښې د دیر د نواب او د ناوګی د خان ترمنځ د یوې معاهدې په نتیجه کښې دیر ته ورکړے شوې وه - د پنجکوړې او سوات د سیندونو په منځ کښې د دشخېلې سیمه او لکه څنګه چې وړاندې ذکر شوے دے د تالاش سیمه په اصل کښې د سوات برخې دی ، خو اوس د دیر په ولقه کښې دی ، په شمول د هغه اضافی سیمو چې پورته ذکر شوې ، د د بړتوله علاقه د دیر د نواب د اختیار لاندې ده ، او اوسېدونکی کړه لې یوسفزی دی او کړه ترکلاني دی ، یاخو نواب ته خراج

ورکوی او یا د هغهٔ خانانو ته . ابادی ئې په اټکلی ډول ـ ۱۰۰،۰۰۰ ده ، لکه څنګه چې وړاندې ذکرو شو ، د سوات د سیند د بنی څنډې قبیلې حکومت د دیر نواب ته حواله کړې دې ، او هم هغهٔ ته باج (خراج ، جزیه ) ورکوی.

د ژمې په میاشتو کښې د پنجکوړې په سیند په بې شمار ځایونو کښې سرے پوره پورې تللے شی ، د سوات د سیند په شان دې سیند ته هم د واورې اوبهٔ راځی د سپرلی په لوړیه وخو کښې په تېزۍ سره خېژی او دمنی تر آخره پورې چرته هم د پوره پورې تللو نهٔ وی . د سوات د سیند په نسبت دې سیند کښې اوبهٔ هم ډېرې وی او چې ئې هم زیات دے ، او هدا وجه ده چې د لرګو ناوونو نه د لرګو درا ورلو د پاره ډېر موزون دے ، د چترال نه بره په دې سیند خلک په ځانګو کانو کښې پوری پورې راپورې ځی ، په چترال کښې یو معلق پل دے ، او پل د رود او پنجکوړې د سیندونو د یو ځای کېدو د مقام نه لږ سیکته چوړ کړے شوے دے چې پنجکوړه پل ورته وائی . دا پل په ۱۸۹۵ء کښې حکومت جوړ کړے و ، او هم حکومت ئې ساتی ، د پنجکوړې د پل او ابازۍ په منځ کښې څلور پلونه موجود دی یعنی مېشته ، ډېر غنډۍ او بهکام چې د اتمانخېلو په حدودو کښې راځی .

د پنجکوړې سیمه په یو ځای کښې هم د سوات د سیمې غوندې پراخه نهٔ ده او د خوړې زرخېزه ځمکه پکښې هم ډېره لږه

ده. د ابادۍ زیاته برخه په دغه بې شماره درو (ناوونو)
کښې اوسېږي کومې چې د بنیادي سیمې سره جګښلي دي
دا ټولې ځمکې زښته زرخېزه دي، او د پورتنۍ برخې غونډۍ او د
ځایونه بې د اوسېدلو د پاره ډېر زړه راښکونکي دي، د غرونو
پورتنۍ مخ ځوړې ځایونه کښې ونې لري، او په پنجکوړه کوهستان
کښې د ډیر قیمتي ځنګلې موجودې دي. په دیر کښې په مجموعي
ډول د سوات په نسبت زیات باران کېږي. د پورتنیو سیمو موسم
په اوړي کښې په زړه پورې او یخ وي، خو د پنجکوړې ښکتنۍ
سیمه لکه د کونړ، سوات په اوړي کښې ډېره ګرمه وي، او په
منځ کښې غیر صحي (unhealthy) وي.

## باجوړ :-

د باجوړ په قله په دې لړ کښې پوره معلومات نه
مشته، چې دا نوم کله او ولې دې علاقې ته کېښودلے شو؟ زما
خپل خیال دا دے، چې کېدلے شي دا نوم د فارسي د (باج) او
(اوردن) نه اخستلے شوے وي، دا خبره په روايتي ډول داسې
راغلې ده، چې د پښتنو د راتللو نه وړاندې باجوړ د عرب نومې یوې
قبیلې علاقه وه، او د دې قبیلې مشر وړاندې حکمراني کوله، امکان
نشته، چې دا نوم دغه علاقې ته ورکړل شوے وي، کومې چې د دغه
مشر ته خراج ورکولو، او یا د کومې دا رخه چې د غه مشر د هند
حکمراني کورنۍ ته د باج ورکولو ذمه اخستې وه. په بلخوړ کښې اته
سیمې شاملې دي. یعنې سورکمر، رود، چهارمنګ، وټلي،

بابوکره ، جندول ، میدان او برول ، په دې سیمو ترکلاڼي قبیله اباده ده ، د دې خلکو خوئ خصلت د دیر او سوات د یوسفزو غونډې دے ، دوئ د شپارلسمې پیړۍ په آخر کښې دې علاقې ته راغلی دی .

دا قبیله د یوې حکمراني کورنۍ د اختیار لاندې وه چې د شجرې په حساب د ناوګۍ خان صفدر خان د دغه کورنۍ په پښت کښې راځي ، په دې قبیله کښې د کورنۍ زړو بداوی لړ کبله د وخت سره سره د حکمران مشر په ځوانۍ زور کښتی کمے راغلے دے ، د عمراخان وړاندې راتلل (معتبرکېدل) هم دا کمزوري په ګوته کوي ، په موجوده وخت کښې نه یواځې دا چې د برول میدان او جندول سیمې د دیر خان قبضه کړې دی او په دیر کښې شاملې دی ، بلکې په باقي پاتې باجوړ کښې هم په ځینو ځایونو کښې د خان حکمراني تش په نوم ده .

په ننۍ باجوړ کښې پنځه سیمې شاملې دی ، سورکمر چهارمنګ ، وټلی ، بابوکره او رود . د سورکمر نه علاوه (پرته) د دې نورو ټولو سیمو او به د رود سیند ته لوېږي کوم چې د سدو په ځوا کښې د پنجکوړې د سیند سره یوځای کېږي ، سورکمر او ناوګۍ د واړه په یو وېله کښې واقع دی . ناوګۍ ، چمرکنډ او سوران الله په خپلو کښې یوځای کېږي او پیپل جوړوي ، او بالاخره د امبار سیند ترې منځ ته راځي چې د پنجکوړې او سوات د سیندونو سره د هغه ځای نه لږ منبکته

یو ځای کېږی، چرته چې دوی د یو بل سره تماس نیسی.

په چارمنګ کښې سالارزی ترکلانی اباد دی او پورتلی کښې ماموند ترکلانی دی، ماموند وپه شورتن، هندوراج او مروړه کښې هم سبنه پوره سیمه نیولې ده، داونډوینه دهغه لوړې (Watershed) شمالی مخ ځوړی جوړوی، کومې چې دکنړ علاقه د باجوړ نه بیله کړې ده، داونډوینه اوس د افغانستان په علاقه کښې شامل دی، او دکابل امیر دعوی لری، چې دا ماموند دهغه په رعایا کښې راځی، ولې هغوی نه خو تراوسه پورې امیر ته باج ورکوی، او نه دهغه افسرانو ته دا اجازت شته، چې د هغوی په علاقه کښې کار ولری، د روډ علاقه د باجوړ بنیادی او اهمه علاقه ده، د دې ابادی یو رنګې (متجانس) نه ده، یعنې ترکلانی، مهمند، صافی، اتمانخېل او داسې نور پکښې اوسېږی. دا ټوله علاقه د ناوګی د خان سره تړلې ده، او هغه دخپل ورور صفدرخان (خارخان) د تره د ځوی ولایت خان (جارخان) او ځوی احمدجان (چې اوس اوس د روډ دخان مقام ورکړے شوید ے) ترمنځ وېشلې ده، د بابوکړې علاقه هم اوس د ناوګی دخان په قبضه کښې ده، او هغه خپل د تره ځوی ولایت خان (جارخان) د پښت خان مقرر کړے دے.

دوتلی، ماموند او چارمنګ سالارزی هسې په نوم خو د ناوګی خان ته د ترکلانو مشر وائی، ولې په حقیقت کښې د

هغهٔ د حکم نه پهٔ مسلسل ډول سرغړونه کوی ، د دوی ترمنځ په پرله پسې ډول جنګونه کېږی ،او دا ویُل کران دی ، چې نن د دې قبیلو کومې برخې د هغهٔ خانی پهٔ عارضی ډول منی او د دې علاقې کومې برخې خراج ورکوی همدارنګه د سبا هم څهٔ پته نهٔ لګی .

د میتی علاقه چې د سور کمر سره پیوست پرته ده د موسٰی خېلو مهمندو علاقه ده ، دا علاقه د ناوګی خان څو واری نیولې ده ، ولې هر ځل ورته مهمندو پهٔ خپلو کښې اتحاد کړے دے ، او بیا ئې مجبوراً پرېښې ده

د افغانستان او باجوړ ترمنځ برید کرښه د کنړ د سیند د مشرقی لوړې سره تللې ده ، د جنوب په لور دا کرښه د چارمنګ د علاقې د سرینه د لر څهٔ ورهاندې پورې پهٔ واضح ډول بنودل شوې ده ، د ۱۸۹۳ئه د ډیورنډ د معاهدې مطابق دا کرښه د هندې لوړې سره د سلالا د سر پورې غزیدلې ده ، خو دا برخه اوس هم د افغان حکومت لخوا متنازعه ده .

د باجوړ ټوله آبادی د یوې اندازې مطابق ۱۰۰،۰۰۰ ده . د رود زیاتره علاقه زرخېزه او پیداواری ده ، د جندول او میدان علاقې چې اوس د دیر سره شاملې دی هم ډېرې زرخېزه دی . د بابوکړې ځمکه ډېره پیداواری نهٔ ده ، او د چارمنګ او وټلی علاقې پهٔ دې لړ کښې نورې هم پاتې دی .

د دیر په نسبت په باجوړ کښې باران کم کیږی، او هدا وجه ده، چې په غرونو کښې ئې ونې کمې دی، د چرته نه چې د رود د سیند خوړګه راوځی، د هغه غریزې سلسلې لوړوالے کم دے، نوځکه وربانډې واوره کمه کیږی، د سوات او پنجکوړې د سیندونو برعکس داسیند د واورې اوبه نه لری نوځکه ئې اوبه په اوړې کښې کمې او په ژمی او سپرلی کښې زیاتې وی.

## د اتمانخیلو علاقه :-

داغریزه سیمه د رود او امبار د سیندونو په منځ کښې واقع ده، او بیا د مشرق خواته د رانیزه او سمرانیزه تر پولې پورې د سوات د سیند او د پیښور د ضلعې په منځ کښې غزیدلې ده، په دې سیمه کښې اتمانخېل قبیله اباده ده، داسې منکارې چې داقبیله د کرلاڼی قبیلې د کورنه څانګې سره تعلق ساتی، کله چې یوسفزی او مندړ قبیلو د سلیمانی سلسلې د شمال مغرب نه کوچ وکړو نو دا قبیله ورسره ملګرې شوه، او په شپارلسمه پیړۍ کښې چې کله یوسفزو سوات او نرکلانو باجوړ ونیولو، نو دې قبیلې هم داخپله موجوده علاقه قبضه کړه.

دا یوه لویه قبیله ده، چې شمار ئې څلوېښت (۴۰،۰۰۰) دے دوئې تل په پوره دول ازاد پاتې شوی دی، او هیڅ ئې خراج نه دے ورکړے، د دوئې علاقه په لوړو غرونو او کندو کپرو

مشتمله ده او که د رود د سیند د جنوبي اړخ د غرې سیمه نږې یو طرفته شي ، نو د دې علاقې څمکه خواره او غیر پیداوری ده .

دا قبیله په دیرو خیلونو او وړو وړو برخو کښې تقسیم شوې ده ، چې د یو بل سره د وامداره بدی لري او په مجموعي دول یکښې یو والے په نظر نه راځي ، دوی د خیلو ګاوندیانو نه ځان جدا ساتي ، البته د توتي خلک چې په یوه وړه غونډۍ سیمه د سمرانړزیه سره په ګوله اباد دی ، د سمرانړزیه د . خلکو سره نږدې رشتې لري .

د اتما نخیلو علاقې یوه وړه برخه د پیښور د ضلعې دانتظام لاندې ده ، د دې برخې مشرق ته توتي شمال اړخ ته ئې متر بازارګي پورې د سوات د سیند جنوبي لوړه Water shed او د بازارګي نه بنکته مغرب خواته ئې د سوات سیند بهیږي د دې سیمې خلکو ته لمن یا دامان اتما نخیل وائي .

په دې غرونو کښې د ملېشته کېدونه وړاندې د دې قبیلې د لوند خوړ د خواړ شاه علاقه نیولې وه ، کومه چې اوس د پیښور په ضلعه کښې شامله ده ، د دې قبیلې یوه برخه چې د کښې په حساب د سانړزیه ، بمبره او سپغزیه سره تړون لري ( دا نیبونه لوس په توتي کښې اباد دی ) اوس هم په دې سیمه کښې ملېشته دی ، او د نورې قبیلې نه را بیل شوی دی . د سنګاوو ، کوهي ، میاں خیل ، خرکي ، برمول

او پیپل زیاتره ابادی اوس هم په دې نسبونو مشتمله دهٔ، څیړله لوند خوړ اوس تقریباً ټول په دلته اباد شو وختکو مشتمل دے .

## سمرانیزي :-

دا قوم د غړ رانیزي نه د فرق کولو په خاطر د رانیزې هوارو سیمونه ورکړے شوے دے، دا علاقه یوه اوږده نرۍ پټۍ ده، چې د سوات د جنوبي پولې د غرونو او د پیرنګی د هند د سلطنت د هغه سرحد ترمنځ واقع ده کوم چې په هوارو سیوکښې د غرهٔ دلمن نه په یوځ فاصله غزیدلے دے، دا تر نزدې وختونو پورې د کوز سوات د رانیزو د علاقې یو برخه وه، د دې علاقې سوبه د کاونډی سوات په نسبت ټیټه ده، کرمي پکښې ډیره ده، بهیدونکي اوبهٔ پکښې نشته، او باران پکښې کم کیږی، هم په دې وجه رانیزو داوسیدلو د پاره د دې سیمې په ځای سوات غوره کړے وُ. او سمه ئې کروندګرو او غریبو محتاجو کسانو ته پریښې وه.

خواوشاه (۳۰) کاله وړاندې دالډ ند د خان شیردل خان چې په د غه وخت کښې په عارضی ډول شرونکے وُ، په ډاډ په دې علاقه ابادو کروندګرو د خپلې ازادۍ اعلان وکړو او د هغوئ د سرکوبۍ د پاره چې رانیزو څومره حملې وکړې هغه ټولې ئې نا کامیابه کړلې، او د د غه وخت نه راپه دې خوا د هغه ځمکو مالکان دی، کومې چې د وئ په اجاره خوړلې، دوئ

ته سمرانیزی وائی ، خوځانته بېله قبیله نه لري ، ځکه چې داخلک په سواتو ، ببېړو ، خټکو او اتمانخېلو مشتمل یو غیر متجانس مخلوط دے ، دلته اته لوئې کلی موجود دی ، د تولو مشرق خواته هریانکوټ دے ، چې ټوله ابادی ئې په اتمانخېلو مشتمله ده . دا نور پاتې اووه کلی د پورته ذکر شویو څلورو قبیلو په مخلوط مشتمل دی ، د کلیو کندی په اکثرو ځایونو کښې هغه زاړه نومونه لري ، کوم چې د راتېږو د پخوانوما لکانو د نسبونو په بنیاد ورکړے شوی وو .

سمرانیزی د نسل په حواله یو مخلوط دے ، ولې خلک ئې د ضرورت لړمخې ډېر متحد دی ، او د خپلو حقوقو ډېره په ټینګه دفاع کوي ، داخلک په ځوئې شریفان او د صحت نه مضبوط او مېړني دی .

دا علاقه یوه وچه پټۍ ده چې هیڅ سیند یا نهر نه لري ، د کر کروندې د پاره ئې باران ته سترګې وي ، قدرت ته کوره چې د دې علاقې په نسبت په سمرانیزی زیات باران کېږي ، په باران دا نحصار د کبله په دې علاقه کښې د فصل نه کېدل څه نادره خبره نه ده . البته چې موسم مهربانه شي نو فصل ډېر ښه کېږي . په تېرو څو کلونو کښې د پېشکی پیسو ورکولو په ذریعه دا کوشش شوے دے چې د خلکو سره د کوهیانو د ویستلو (کېندلو) په لړ کښې لاس ویشی ، لوس په دې علاقه کښې د کوهیانو نه او به

کېدونکي ځمکه مخ په زیاتوالی ده .

د هغه مخصوصو حالاتو په کومو کښې چې د سمرانیزی خلکو دا علاقه نېولې ده ، له کبله په دې کښې هیڅ د حیرانتیا خبره نشته ، چې دلته د ځمکې د وخت نظام د دیر ، سوات او باجوړ نه بنیادی توپیر لري ، دیو خاص وخت نه رومتّه د ځمکې د وېش نظام چې نور په هر ځای کښې شته ، ـ دلته وجود نه لري .

# د نسلونو په حقله

## ا : پښتانه نسلونه :

هغه پښتني قبيلې چې په دې
رپورټ کښې ورباندې بحث کېږي، د ژوند د طور طريقو، کردار
مذهب او ژبې د نظره يو بل ته دومره نزدې دي، چې
دا اسانتيا په خاطر دا خلک ټول يو خلک او د دوئ علاقې
يوه علاقه تصور کېدلے شي .

د دې علاقې ټول پښتانه نسلونه ځانته بنی اسرائيل
وائي، دا د دې رپورټ موضوع نه ده، چې د هغوئ د کښې
د دې دعوې په حقله بحث وشي، صرف دومره به ووايو، چې
دوئ ځان ته د تالوت (د اسرائيلو بادشاه) پښت وائي .

په دې علاقه کښې آبادې قبيلې اکوزئ يوسفزی
ترکلانی او اتمانخېل دي، چې دا ټول ځانته د شريکې کښې
خلک وائي، دا روايت رارواں دے. چې دوئ د خراسان د
غورہ مرغه (Gwara Murgha) نه راغلي دي
د لته چې کوم خراسان ته اشاره ده، دا هم هغه ځائ دے
چې اوس هم د خراسان په نوم يادېږي، او د بلوچستان
د صوبې د ژوب په ضلع کښې واقع دے. دا سې ښکاري لکه
چې لومړے اتمانخېل د د غه ځائ نه راروان شوي وي، ځکه

چې داسې وئيلې کېږی، چې کله يوسفزئ او ترکلانی د خراسان نه شمال خواته په لارې وو، نو ناتمانخېل په د غه وخت کښې د کومل سيند په غاړه آباد وو، او هم د دغه ځائ نه د دوی سره يو ځائ شول.

د بلوچ افغان سرحد کمېشن د فعاليتونو په دوران کښې د کونړ د سيند په بره (دا سيند د خراسان نه ترکومله غزېدلے دے) د کستونئ په مقام د کيمپ د پاره د ځمکې پاکولو په وخت کښې د انا اشنا حقيقت راڅرګند شو، چې د دېوالونو د يوې سلسلې باقيات راښکاره شول، کوم چې په د دېوالونو کښې بند د يو لوئ پراو ځائ ښښې ښانې وکولې، کله چې د مقامي خلکو نه معلومات وشول، نو پته ولګېدله، چې دا يو روايت راروان دے، چې دېر پخوا يوه قبيله چې يوسفزئ يادېدله ددې علاقې نه تېره شوېده، چې د کستونئ په مقام ئې د څه وخت د پاره دېره اچولې وه، او ددې وجې د هغوئې د پړاو ځای اوس هم د هغوئ په نوم يادېږی.

## د دير، سوات او باجوړ بېګانه (غيرپښتون) نسلونه

### توروال او ګروی:-

په سوات کوهستان کښې چې کوم بېګانه نسلونه اوسېږی د هغوئ ذکر ورانديې شوے دے دوئ ته توروال او ګروی وائی، چې دا دواړه نسلونه بېلې بېلې

ژبې لري، ګمان دا دے، چې دا خلک د هغه نسلونو باقيات دی کوم چې په د ير او سوات کښې هغه وخت مېشته وو، کله چې پښتنو دا علاقې نه وې نيولې، تر او سه پورې د دوی په باره کښې په ثبوت رسېدلی معلومات نشته.

## بشکری :-

د پنجکوړه کوهستان په لړکښې د بشکريانو هم ذکر شوے دے، چې په يقيني توګه د پورته ذکر شوو نسلونو سره مشابهت (يورنګوالے) لري. د بېډلف ـــــ (Biddulph) مطابق دوی په درې برخو وېشل شوی دی. ملاتور، کچنور، او ګوعيور، د دوی ژبه که ګوی نه ده، نو مشابهت ورسره ضرور لري.

نور بېګانه نسلونه چې په دې علاقه کښې خوارۀ دی. په لاندې ډول دی

## مشواڼی :-

دوی زياتره په جندول کښې او يوه ورهـ برخه ئې په ميدان کښې اوسېږی، د دوی د کښې او د باجوړ ته راتلو په باره کښې ريکارډ نشته، البته د نوم نه ئې داسې ښکاری چې د دوی او د کابل خوا ته د آبادې مشواڼی قبيلې بنسټ (ربليا د ۲ يو دے، د دوی خپله څه نشته خو د هغه قبيلو څخه يو برخه خوړې کومې چې په دې علاقه کښې آبادې دی، د دې نه وړاندې چې د دې علاقو د نفوسو د

شمار په لږ کښې کومه اندازه ورکړے شوېده ، په هغې کښې مشواڼۍ هم شامل دی ، نورې بېګانه قبیلې شېخ خېل ، مندېزیه ، سینزیه او خوازه زیه دی ، چې په جندول کښې اوسی . او په میدان کښې حرامزیه او سېبزیه اباد دی . وئیلې شی ، چې داد کافرو اولاد دے - ولې اوس اوس اسلام ته راوړېدلی دی ، او پښتانه حسابېږی . البته شېخ خېل د دې نه مستثنیٰ دی ، او دومره اهم نهٔ دی ، چې بحث ورباندې وشی . هم په دې ډول په دیر کښې روغانی ، کټهنی او ګورو دی ، په باجوړ کښې په لږه اندازه مهمند او اتمانخېل او سواتی خواره واره اوسېږی ، سواتی د سوات اصل اوسېدونکی وو ، چې بیا یوسفزو د سوات نه شړلی وو . او اوس ئې اکثریت د هزارې د ضلعې په پکلی کښې مېشته دے .

د جندول صاحب زادګان دعویٰ لری ، چې دوی د عربو اولاد دے ، خود سیدانو غوندې حیثیت ورکړے شوے دے ، د دوئ مشر نیکهٔ چې میاں امر رحمت نومېدهٔ ، په بلجوړ کښې مېشته شوے وُ .

د خال اخوند زادګان غالباً د یوسفزو د نسله نهٔ دی خو اوس ورته سلطانخېل ملیزی وئیلې شی ، باید دوئ د اخون خېلو سره ګډ ورډ نهٔ کړو . اخون خېل د پاینده خېل نسب یوه څانګه ده ، او د دیر نواب هم د دې خېل سره تعلق سا(تی)

په دې ټوله علاقه کښې زیښت زیارت سیدان ، میانګان، ملایان طالبان او داسې نورې مذهبې طبقې موجودې دی .

یوګڼ شمېره او هرځائې موجود نسل د ګوجرو دے چې په دې ټوله علاقه کښې خواره دی ، د دوئ کښېنه د هندوستان نه ده ، چې غالباً جټ دی ، یا راجپوت ، د دوئ ژبه د پنجابۍ سره مشابهت لری ، ولې دوئ ټول پښتو هم وائ دوئ په لویو غرونو ښاروی ساتی ، د پاوندګلوبه ژوند کوی او لاندې وادۍ ته کله کله راکوزیږی ، د شمار پوره اندازه ئې نه لګی ، البته په زرګونو کښې ضرور دی ، په مجموعی ډول دوئ خاموشه تېری نه کوونکی او کلک خلک دی ( دا غلطه ده چې ګوجر تېری کوونکی نه دی دوئ ډېر تجربه کار غله دی - او . او کرستهنسن ) توپک د خپلو ګوارو او رمو د حفاظت د پاره ساتی ، او ډېر کله کله په قبیلوی جنګونو کښې برخه اخلی ، د چاپه ځمکو چې دوئ ښاروی ساتی ، هغوئ ته د غوړو په شکل کښې اره وېرکوی ، دوئ ډېر زوړور او وحشی سپی ساتی او د ګوارې سره چې کوم نران سپی ګرځی ، هغه اکثر خشی وی .

په دې علاقه د کرخېل غلزیه دوه واړه واړه ټولی اباد دی ، چې په عام ډول ورته کوچی وئیلے شی ، د دوئ شمېر خوا شاه دوه سوه دے ، او په عمومی ډول په لاندېنی

سوات کښې ډېره دی، دوئ د افغانی واکمنو سره د اختلاف رائې لرلو په بنیاد اتلس[۱۸] کاله وړاندې افغانستان پرېښے وُ.

## هندوان :-

هندو بنیاګان د دیر سوات او چترال په ټولو لویو ورړو کلیو کښې موجود دی، د دوئ اکثر خلک د څو نسلونو راسې د دلته مېشته دی. د بلجوړ په میاں کلی کښې د نورو ټولو کلیو نه زیات هندوان اباد دی، ولې د هغوئ بې شمار. کورونه په تمبر، مایار، دیر، ناوګه او جار کښې هم اوسېږی د سوات په علاقه کښې دوئ زیاتره په تانړه مینګوره، بریکوټ، بټخېله او خار کښې مېشته دی، پښتانه د دوئ سره ښه سلوک کوی، ولې د ودونو په موقعه تریې توره (ټیکس) اخلی او د زوړ روایت د مخې په پراڼه د کلی د مشر حجرې ته تېل او تمباکو ورړی، او همدا رنګه د اختر په موقع د اتانیز خواږه راوړل هم د دوی د پاره لازمی دی.




## ژبه

د سوات کوهستان د دیر یا پنجکوړه کوهستان نه بغیر ددې علاقې ژبه پښتو ده، کومه پښتو چې یوسفزی قبیلې وائی، دا ددې ژبې د ټولو نه پاک او سوچه شکل دے، د اتمانخېلو پښتو د دوئ نه لږه غونډې بدله ده، د باجوړ خلک هم ډېره پاکه پښتو وائی، خو د هغوئ د خپلې لهجې رنګ پکښې

مغه خلک چې په سوات کوهستان او د پنجکوړه کوهستان په برنه برخه کښې اوسېږی ، په حقیقت کښې د مغه خلکو باقیات دی ځوک چې د دې علاقې اصل مالکان وو ، او د پښتنو د فتوحاتو په نتیجه کښې پورتنیو علاقو ته شړلے شوی وو ، د سوات کوهستان اوسېدونکی دوه ژبې وائی : توروالی او ګروی ، د پنجکوړه کوهستان د پورتنی برخې خلک د بشکرو په نوم یادېږی او ژبه ئې بشکری ده ، د دې ژبې څقلد ویلے شی ، چې دا په حقیقت کښې ګروی ده ، هیله ده چې په نزدې وخت کښې لینګوسټک سروې آف انډیا په دې لړ کښې معلومات وکړی .

ګوجر چې په دې علاقه کښې په زیات شمېر کښې موجود دی ، په یقینی ډول د لرغونی هندو ابادی باقیات دی ، دوئ اوس د دې علاقې په اکثرو برخو کښې پښتو وائی ، خو دا یو عجیبه حقیقت دے ، چې د دې او اسمار په پوله پراته ګوجر په خپلو کښې اوس هم د هندی ژبې په یو شکل کښې خبرې کوی . کوم چې پنجابی ته نزدې دے .

## مذهب

د کومو علاقو د خلقو په باره کښې چې دا رپورټ لیکلے کیږی هغوئ سنی مسلمانان دی .

په لومړی نظر کښې دا خلک عقیده پرست معلومیږی ، ولې

په حقیقت کښې د مذهب اثر ډېر کم دے . دوئ مونځونه او د مسلمانۍ رسمونه ډېر په باقاعده ډول اداء کوی ، د ملا او مذهبی پېشوا کار دادے ، چې دوئ په دې رسمونو کښې لږ څه وساتی ، داخلك د مذهبی نه زیارت وهم پرست دی ، اوهم د دې وهمونو په استفاده ملایان دا خلک ډېر په آسانه او مؤثر ډول په خپله قابو کښې ساتی ، که چرې د یو مذهبی شخصیت د خوب یا نظر په شکل کښې دوئ ته یو ډېره د عقل نه لرې او نا ممکنه خبره هم وشی نو دوئ ورباندې یقین کوی .

ملایان او مذهبی کورنۍ په دې ټول علاقه کښې په کثرت سره کښې موجودې دی ، په دیر سوات او باجوړ کښې چېرته اکثر ځومره زیارت دی ، شاید که چېرته د ځمکې په مخ بل ځای داسې وی ، د دې وجه داده ، چې دلته ډېر زیارت زیارتونه دی ، او وهم پرستی د دې خلکو کمزوری ده ، نو ځکه چې څوك دې زیارتونو ته راځی . نو د دې خلکو د سادګۍ نه فائده اوچتوی ، او دلته پاتې کېدلو ته راغب کېږی .

د دوئ رښتینے مذهب پښتونولي ده ، چې د دوئ ټول فعالیتونه احاطه کوی ، دا نا قابل تعریف نوم ، د ښې بدې یو یې ناقابل فهم ضابطې ته وکړے شوے دے ، د دې ضابطې لاندې میلمستیا د یو سړی مقدسه فریضه ده ، هر هغه عمل چې په بل د بری د پاره وشی جائز دے ، خواه که اراده او بنیاد دې هر څه وی ، د ښځې د بې عزتۍ بدله د زنا کوونکی مرګ دے . البته یو

څو روڼې او یوه بله ښځه د دې په ځای په آسانه قبلېدلے شی، د یو سړی د پاره دا لازم ده، چې د خپلو خپلوانو مرسته او کمک وکړی، ولې د دې سره دا هم ده، چې د ترونو ځامن په هر ځای کښې دیو بل سره په د ښمنیو ښتې دی. د دې قسمه اخلاقی ګډوډی بې شمېره مثالونه په اسانه پیدا کړی. د دې د پاره چې قرآن او حدیث د دوی په ژوند او د ګاونډیانو سره په سبب تعلق کښې څومره عمل دخل لری، د دوی یو څو متلونه رانقل کوم.

ــ پښتون نیم قرآن منی نیم نهٔ منی. ــ د پښتون یوه پښه په جنت او بله په دوزخ کښې ده. ــ د دوزخ ژبه به په دغه ځای کښې د پښتنو د زیات شمېر د کبله اروـ مرو پښتو وی. ــ شریعت سبه دے خود ځوان او په څټه روغ سړی سره نهٔ جوړېږی.

پښتونولی یونالیکلے قانون دے، او د ېره پراخه ترجمانی ئې کېدلے شی، دا قانون د ډېرو فعالیتونو د لازمولو د عادلانه حق ثابتولو او یا د هغوی نه د ځان ژغورلو د پاره په کار راوستلے شی. ولې بیا هم په مقامی او قبیلوی سویه رائج رواج د دې تعین کوی.

سره د دې چې په دې علاقو کښې د ملا اثر موجو د دے، ولې په انفرادی ډول دا خلک لکه د کاکړو او د ځینو نورو جنوبی پښتنې قبیلو غوندې جنون پرست نهٔ دی، کهٔ

چرې ملا پکښې مداخلت ونهٔ کړي ، نو د دې خلکو سره ژوند کول اسان دی ، ولې کله چې د دوی اجتماعی جنونیت را وپاروله شی ، نو بیا د دې ترې خدای آمان درکړي ، دا امکان شته ، چې د دې علاقې د پورتنیو او د د پرو برخو سیمو لکه د سوات او دیر کوهستان او د کانړا غوربند ، اباسین کوهستان ، خلک نسبتاً پهٔ نزدې وختونو کښې مسلمانان شوی وی . لکه څنګه چې عموماً نوی نوی مذهب بدلونکي وی ، نو دا خلک د هغه خلکو پهٔ نسبت چې پخوا مسلمانان شوی دی زیات جنونیان او عقیده پرست دی ، هم دغسې صورتحال د ګجرو هم دے ، چې د لرغونی هندوانو باقیات دی ، او اوس انتهائی جاهل او عقیده پرست مسلمانان دی (د ګجرو عقیده پرستی د حقیقت سره ممون نهٔ خوری (زیارو نکے)

## مذهبی طبقې

د دې علاقې د مذهبی درجه بندۍ او د مذهبی کورنیو پهٔ منځ کښې د توپیر د وضاحت د پاره باید څو جملې ولیکلے شی .

دا طبقې پهٔ بیلا بیلو دوو ډلو کښې ویشلے شو ، لومړۍ ډلې ته د مذهبی نسلونو غړې وئیل پکار دی ، دا د تېر وخت د مذهبی یا پاکو شخصیتونو اولاد دے ، چې د

هغوئ د بزرګئ او اهمیت د برکته ورته مذهبی مقام حاصل دے۔ د دوئ درجه بندی د سیدانو، میاګانو، اخونزادګانو او صاحبزادګانو په ډول کېږی۔ د پښتنو او یا وئیلے شو چې په عمومی ډول د مسلمانانو د سوچ (فکر) مطابق د روحانی اهمیت په حواله د دوی ترتیب په لاندې ډول دے؛

I :- سیدان :-

سیدان د رسول الله اولاد ته وئیلې شی،د دوئ د زیات شمېر او مختلفو حالاتو له کبله دا ضروری نۀ ده، چې په دې حیثیت هغوئ ته په لوړو روحانی فرقو فوقیت ورکړے شی۔ ولې یو سید چې کله د مذهبی شخصیت په حواله ښکاره مقام حاصل کړي، نو په نورو مذهبی فرقو فوقیت مومی .

II - میاګان :-

دا د هغه بزرګانو او مذهبی مشرانو اولاد دے، چې شهرت ئې یوازې په مقامی ډول نۀ، بلکې په ډېرو قبیلو کښې تر لرې لرې پورې شوے وی . میاګان د هغه بزرګانو پښت ته وئیلے شی، څوک چې په تېرو پېړیو کښې تېر شوی دی ، د جدیدو بزرګانو اولاد ته میاں نۀ وئیل کېږی،د سیدانو په حقله شوې تبصره په میاګانو هم صدق کوی ۔ الف، د سوات اخون په دې طبقه کښې نۀ راځی ، د هغۀ اولاد ته میاګلان محض د احترام د پاره وئیلې شی ، هغوئ په اصلی معنو کښې صرف اخونزادګان دی، کۀ چرې دا خاندان خپل روحانی

ریکارډ وساتی، نوامکان شته چې د رتیلونکی وخت اولاد دې میاګان جوړ شی (ب) قریشیان د میاګانو په زمره کښې راځی.
(ار۔ او۔ کرسټنسن)

## III اخون زادګان:۔

ځینې وخت دوئ ته پیرزادګان هم ویلې شی دا د هغه بزرګانو اولاد دے، چې په مقامی ډول، یا د یوې قبیلې ترحده دې شهرت حاصل کړے وی، نوځکه د لته د خال اخون زادګان (دیر) د مایار و اخونزادګان (جندول) دجمبولے اخونزادګان ــ (اد ینزئ ه سوات) او داسې نور موجود دی، د مشکی عالم اولاد ته هم اخون زادګان وائی، ځکه چې ملا مشکی عالم پخپله اخونزاده وُ. که چرې داسې نهٔ وے، نو هغوئ به محض صاحب زادګان وو.

## IV ۔ صاحبزادګان:۔

دا د هغه ملیانو اولاد دے، چا چې د علم یا بزرګۍ په حواله شهرت موندلے وُ۔ په دې جمله کښې د کوټې ملا، د مانکې ملا، د هډې ملا، کربوغه ملا او داسې نور و پښت شامل دے.

د دې مذهبی طبقو د پاره ضروری نهٔ ده، چې دوئ دې د کاروبار په لړ کښې د مذهبی چار و سره تړلی وی، د دوئ د پرکم شمېر په تولنیز ژوند کښې د مذهبی معاملو سره تعلق ساتی. د هغوئ پېشه (وظیفه) کاروبار یا کردار د خلکو

په نظر کښې د هغوئ مذهبی مقام د پرېپه لړه اندازه متأثره کوی .

دوئم دول مذهبی خلك هغه دی، چاچې مذهب خپله پېشه او د ژوند تېرولو ذریعه (وسیله) جوړه کړېده . په دې ډله کښې ټولې تبلیغی طبقې شاملې دی، چې په بېل بېل ډول څه دا رنګې جوړېږی .

الف: د کلی ملا :- څوك چې ساده ژوند تېروی .

ب :- پېش امام :- څوك چې د یو خاص جماعت سره تړلے وی .

ج :- د علاج معالجې د پاره د مشهور زیارت مالدار مجاور .

د :- د کراماتو خاوند بزرګ :- څوك چې په زرګونو مریدان لری .

دا ضروری نه ده، چې د دې کسانو تعلق دې د یو مذهبی نسل یا ذات سره وی، د دوئ اثر د دوئ د کار په حواله زیاتېږی، خو د دې طبقې ځینې د پېر زیات کامیاب کسان د عام اولس د صفونو نه راوتلی دی، د سوات لوئ اخون یو ګوجر و. (داولف کېرو په خیال اخون په ښته صافی و - ژباړونکے ) او مست ملا (سرتور فقیر) د یو بونېر وال - ملك ځوئ و .

د لومړی قسم مذهبی خلك یعنې د مذهبی نسل یا ذات سره تړلی کسان په دې ټوله علاقه کښې د درنوکورنیو په شکل کښې اباد دی، د دوئ د زیاتره کسانو سره سیزی

دی، چې مشرانو ته يې خلکو د نذر په توګه ورکړي وي
دوی د خپل مذهبي مقام په برکت چې څومره کېدلی شي،
د خپلو ګاونډيانو نه بوده کوي، ولې په نورو حوالو د علاقې
د خلکو نه ډېر کم توپير لري.

دويم قسم خلک يعني د تبليغ يا وعظ نصيحت والا خلک
په دې علاقو کښې په نسبت زيات شمېر کښې موجود دي
په دوی کښې او بيا په خاص ډول د کلي په ملايانو او قاضيانو
کښې يو شمېر صحيح مذهبي او د سنې ژوند خاوندان شته
خو اکثريت يې مذهبي مهمجو دی، چې د خلکو د وهم پرستۍ
نه استفاده کوي او د هغوی په خيراتونو سربېرې (چاقبرې).

طالبعلمان د لويو سړو نه هم بدتر دي، دا کسان اکثر
ځوانان دي، چې د مذهبي پېښې د خپلولو سوچ لري. دوی
د دې علاقې زيارتونو ته راغونډ ېږي. او په ظاهره د مذهبي
تعليم د حاصلولو د پاره دي يا بل مذهبي مشر سره ځان
تړي. د دوی شمېر په کليو کښې د ملاتيت د پاره د خالي
ځايونو (اساميو) يا متعلقه نورو مذهبي چارو په تناسب
ډېر زيات دے، او دوی مجبور دي چې د ژوند تېرولو د پاره
نورې لارې چارې ولټوي. په علاقه کښې چې څه ورانکارۍ کېږي
په هغې کښې دوی اهم رول لري. دوی په ډېرو جرمونو
کښې د لمسوونکي يا څنګله کارکوونکي رول لوبوي. د مذهبي
مقام د برکته دوی د عامو خلکو نه خوري څښي، او خلک دوره

وهم پرست دی چې دوی شړی نهٔ، حتیٰ چې خپل کورنے امن هم وربانډې پهٔ دلو لګوی .

پهٔ علاقه کښې چې زمونږ اثر ځومره زیاتیږی، دومره د دې مهمجو خلکو (کهٔ لوی دی کهٔ واړهٔ) اثر کمیږی. د دې د پاره چې خپل اثر او رسوخ برقرار وساتی ، دوی چې پهٔ کومو خلکو کښې او سیږی د هغوی د ذهنی ، سماجی او مادی پرمختګ مخالفت کوی . پهٔ دې وجه مونږ د دوی دښمنی پهٔ سرا خستې ده ، دوی هر وخت د حکومت او سرکاری کارونو غندنه کوی ، او کله کله چې موقع پهٔ لاس ورشی نو د جنونی جهاد پهٔ شکل کښې بهرهم راوځی .

## مذهبی مشران

د دې علاقې ټول خلک د یو یا بل لوی مذهبی مشر روحانی مشری تسلیموی، د دې روحانی مشرانو ترمنځ رقابت ځنې وخت د پر تیېزا او نهٔ ختمیدونکے وی، دوی پهٔ ورو کی اختلاف هم یو بل ته پهٔ کافر ویلو سرفه نهٔ کوی. دوی چې د یو بل مریدانو ته پهٔ هغه جهان کښې د کوم دردناک انجام خبرداری ورکوی، کهٔ چیرې پهٔ هغې یقین وشی ، نو د دې علاقې صرف یو څو پښتانهٔ د جنت طمع لرلے شی . د دوی مریدان کوم چې د دې علاقې عام خلک دی د دوی پهٔ رقابت کښې د وختی د لچسپی نه

پرته نور زیارت دخل نهٔ لری ولې ملادوله مریدان یې ځانونه ددوئ په مشرو کښې ورګڼړ وی اوکه مشهری دومره زیارت وی چې دکتنې امکان ئې وی نو د تشد د لارې هم اختیاروی دا اهم مذهبی مشران په لاندې ډول دی.

١- هډې ملا (نجم الدین):- دهٔ ته هډې ملا ځکه وائی- چې د ده کور د جلال اباد ضلعې په هډه نومې ځائې کښې دے- اوس هغه د باجوړ په چمرکنډ کښې اوسېږی- دے د سوات د اخوند مرید وُ چې د مانکی ملا سره سخت رقابت لری- ددوئ په منځ کښې اوس په دې مسئله شخړه روانه ده چې په لمانځه کښې دلومړی سجدې نه د راپاڅېدو په وخت کښې مسواک کړے اوچړل سنته او که نه ؟ (مسئله په اصل کښې داوه چې د قاعدې په دوران کښې د "اشهد ان لا اِله اِلا الله" د ویلو سره مسواک ګوته اوچړل بکاردی او که نه ؟ "زیاړونکے") دې مسئلې په افغانستان او نورو ځایونو کښې د کلکې عقیده پرېتو مسلمانانو توجه ځان ته راکړ ځولې ده- د دهٔ داثر په حلقه کښې باجوړ، جندول، اسمار د جلال اباد ضلعې یوه برخه، ماموند او اتمانخېل شامل دی، په پېښور ضلع کښې ئې هم ډېر مریدان شته- د سردار حبیب الله خان پحقله ویلې شی- چې هغه د دهٔ تلینک منونکے دے خو داسې شواهد موجود دی- چې امیر په پورته ذکرشوې جګړه کښې د مانکی مُلا طرف اخستے وُ- د سنه ۱۸۹۲ء په جهاد کښې د هډې مُلا بنیادی لاس وُ- ولې وروسته ئې بیا ځان د حکومت په مرستیالو کښې واچولو.

۲- مانکی مُلا :-

دهٔ ته مانکي ملا ځکه وائي چې کور ئې د نوښار خواته په مانکی نومې کلی کښې دے، دے هم د سوات د اخوند مرید و- او د هغهٔ د مرګ نه پس ئې د هغهٔ د پیر و کارو یوه لویه برخه په ځان پسې کړله، او د هغهٔ مذهبی اثر ئې خپل کړو، د هغهٔ مریدان د پېښور په ضلع او سمرانړی کښې ډیر دی، هم دا رنګه ښاو خوا نیم اتمانخېل په هغهٔ پسې دی. د دې نه علاوه په کوز سوات کښې ډیر او په بر کښې لږ دی، دهٔ د حکومت د دښمنۍ په کارونو کښې چرې هم په ډاګه برخه نهٔ ده اخستې او د سنه ۱۸۹۶ء په اړی ګړی کښې ورته د غلی پاتې کېدو شرف حاصل دے .

۴- د سوات اخون :- دهٔ ته په ټبرو وختونو کښې د پورته ذکر شویو دوه مذهبی مشرانو په نسبت زیات اهمیت حاصل و. دے په سنه ۱۷۸۴ء کښې په بر سوات یا بونېر کښې (ځنې خلک وائي چې د بر سوات په جبرړه او ځنې وائي چې د بونېر په اسام کښې) په یوه ګوجر کورنۍ کښې پیدا شوے و، د دهٔ اصل نوم عبدالغفور و. دهٔ خپل ژوند د شپونکی په ډول شروع کړے و، د خپلو څارو و سره به ګرځېدلو. روژې به ئې نیولې، او عبادت او مطالعه به ئې کوله- دے بیا د اباسین په غاړه د بېکا کلی ته لاړو چې اوس دا علاقه د بریټش یوسفزی په نوم یاد یږی، لو

په دې ځای کښې ئې د بزرګه او پلرکالی عزن خپور شو. او د اخون لقب ئې وګټلو. د بېګا نه بیا سلیم خان ته لاړو، او د هند خان (خادی خان چې د سید احمد شاه د لاسه وژلے شوے وُ) د مرګ په تور ګلړ شو، سید احمد شاه د هندوستانی جنګن پرستو یا مجاهدینو د ډلې بانی وُ. د دې واقعې له کبله اخون ئې وخته سلیم خان پرېښود. او د څه وخت د پاره په کوجر ګړهی کښې دېره شو. او بیا وروستو د اکوړې خواته تورډهېری ته لاړو. په دې دوران کښې د هغهٔ شهرت او اثر تر لرې لرې پورې خور شو. او د بزرګ اضافی لقب هم ورته ورکړے شو په ۱۸۲۹ ع کښې امیر دوست محمد خان د هغهٔ نه د سکهانو خلاف کمک وغوښتلو. او اخون د یوسفزو د یو لوی لښکر سره د باجوړ خواته په شبخان زی کلی کښې د هغهٔ سره یو ځای شو، خو د دې باوجود هم سکهان بریالی شول، او اخون باجوړ ته وتښتېدو. د دغه ځای نه بیا د سمرانېزی یو وړوکی کلی قللد رې ته لاړو. او هلته ئې څو کاله د ګوشه نشینی ژوند تېر کړو. بیا بېرته بېخبلې ته لاړ. او د دغه ځای نه سېدو ته منتقل شو. او هلته د ۴۳ کلونو په عمر کښې په مستقل ډول دېره شو. په سېدو کښې ئې د یوې نېکېخېلې نجلۍ سره واده وکړو. او دوه ځامن ئې ترې پیدا شول، چې د دې موجوده میان ګلانو پلرونه وو. هغه په ۱۸۷۳ ع کښې د ۹۳ کلونو په عمر کښې حق ورسېد. سیدو ته د راتلو

نه واخله ترمرګه پورې اخون د سوات د یوسفزو د سر سړے وُ.

د اخون اختیار که هرڅو ډېروُ ، ولې بیاهم مطلق نۀ وُ لو داسې ډېر مثالونه شته چې د هغۀ خواهشاتو او حتی ښکاره حکمونو ته هم درناوے نۀ دے ورکړے شوے . او خصوصاً کله چې د دې حکمونو په منلو کښې د لوټ یا نورو ګټو نه لاس وینځل پرېوتل ، بیاهم د اخون په حلقه وئیلې شول چې دا هغه واحد مشر دے ، چې یوسفزو د سوات په سیمه او خوا وُ شاه د قبضې نه ورو ورسته په کلهم ډول منلے دے.

د اخون دوه ځامن عبدالحسن او شیرین مره دی او ځلور لمسی لې چې میان ګلان ورته وائی او مشر ئې سید باد شاه دے اوس په سید و کښې اوسېږی . او د اخون د مزار ساتونکی دی . دوی د اخون د روحانی شهرت د حاصلو د پاره ډېره هڅه نۀ ده کړې ، په خندا خوشحالی او لوبو توقو خپل ژوند تېروی . ولې مذهبی عبادتونه د خپل نیکۀ په جمات کښې سرته رسوی . د اخون د پښت اثر په دې وجه زیات دے ، چې هغوئ د اخون د مزار سره تړلی دی . او د دې مزار ته د دې علاقې د ټولو برخو او هند نه په ډلو ډلو خلک راځی . دوئ د خپل نیکۀ د نیوی قوت بایللے دے ، خو په دې علاقه کښې د هغۀ د روحانی اثر یوه برخه ئې په میراث کښې رسېدلې ده . د دې قوت یوه برخه په بر سوات کښې سرتور فقیر او په کوز سوات او نورو علاقو کښې مانکی

ملا او څلې ملا قبضه کړېده . په هند کښې د هغوئ ډېر زيات پيروکار موجود دی . او د يو تاکلي وخت نه روسته د هغوئ نه غټه چنده راغونډوله شي . د دې تلنګونو او په سيدو کښې په مزار د شکرانو اچولو نه د ميان ګلاب بڼه پوره امدن دے . د دير ، سوات ، باجوړ او سمرا بنزه په ډېرو برخو کښې د هغوئ سپړه دی .

د ١٨٩٧ ع په سپرلي کښې د حکومت خلاف د يو جنوني پاڅون د پاره ميان ګلانو د څلې ملا سره فعاله برخه اخستې وه . دا پاڅون په دې موقعه په عارضي توګه وځپلے شو . ولې د دغه کال په مني کښې په پوره ډول راښکاره شو . او د وئ پکښې فعال کردار وکړو . د دغې وخت نه را په دې خوا دوئ ته د حکومت سره د تعلق ساتلو احساس شوے دے . او اوس د دوئ سره زموږ تعلقات دوستانه او په زړه پورې دی . دوئ ځوځله د ملاکنډ پوليټيکل ايجنټ ته د خپلو کورنو او قبيلوی شخړو د هوارولو د پاره مراجعه کړې ده .

د اهميت له نظره په اخون پسې لېونے فقير راځي ، چې لېونے ملا يا ملا مستان ورته وئيلے شي . په عام ډول ده ته په بر سوات کښې سرتور فقير وائي . د ده خپل نوم سعد الله خان دے . او د يو بونېروال ملک ځوی دے . د ځوانۍ په وخت کښې يو زبردست کمه مار او لوبغاړے

وُ. والیٔ چې دهٔ د خپل ورور سره جګړه کړېوه، او هغه ئې وژلے وُ (ځینې خلک وائي چې دا مرګ اتفاقي وُ). په دې وجه دے د بونېر نه وتښتېدهٔ او هند ته لاړو. څهٔ موده په اجمیر او د هند په ځینو نورو ځایونو کښې پاتې شو. په ۱۸۹۵ء کښې بېرته بونېر ته راغے. او ډېر ژر ئې د بزرګۍ او تقویٰ تږس لاړو. په سوات او اباسین کوهستان کښې تر لرې لرې پورې وپېژندلے شو. دے دېرې لارې سړے دے. د سیاسي چالونو سینه نهٔ لري. دے د جنون تر حده د پېرنګي حکومت مخالف دے. نو ځکه ورته ملا مستان یا لېونے ملا وائي.

دے په ۱۸۹۷ء کښې په لاندې کښې د بره شوا و د کراماتو د لرلو غږ لې خور شو. په دې دوران کښې په سوات او د نورو ځایونو په سرحدونو د ناراميه وخت وُ. دا خبره اوس په ثبوت رسېدلې ده، چې د دې کال په پسرلي کښې د هډې ملا، د سوات د میان ګلانو او د تیراه د سید اکبر له خوا دا تېینګه هڅه شوې وه، چې د چترال د کلیز ریلیف په وخت کښې په شریکه په یو وخت خلک راپاڅوي، خو په دغه موقعه دا سې ونهٔ شول. ځکه چې د مشرانو تر منځ معاهده په وخت و نهٔ شوله. د نورو مشرانو د جهاد په پیل کولو کښې ناکامۍ سرتور فقیر بې صبره کړ. او دې کار ته ئې پخپله په یوازې ځان ملا وتړله، هغهٔ د جهاد اعلان وکړ. او په مالاکنډ ورغے. دا خود.

سرانه عمل په اصل کښې زمونږ سره سنبکنه وه، ځکه چې قبیلو ورته تیارے نه وُکړے، او په ځائې ددې چې مونږ په شمال مغربي سرحد د یو عمومي او په یو وخت شروع شوي تحریک سره مخامخ شو. بې ربطه او یواځې پلټون خدائې په لاس راکړو. بیا هم لکه چې د مالاکنډ داړې کړې تاریخ به ئې په ډاګه کړي سرتور فقیر داسې کلک او سخت جنګ وکړو چې د شمال مغربي سرحدونو په جنګونو کښې سارے نه لري، فقیر ماتې وخوړله. زخمي شو او کوهستان ته ستون شو. د اوس نه د څه وخت وړاندې پورې هغه د پټې خواته په میاندم کښې اوسیده.

هغه د جهاد په نیت په مسلسل ډول د خلکو د راپاڅولو کوشش وکړو، خو صرف یو ځل په ۱۸۹۸ء کښې په خپله دې هڅه کښې کامیاب شو. ده د دیر په نواب د حملې سـنه شروع وکړله. طمعه ئې داوه، چې د دیر د قبیلو په مرسته به په مالاکنډ تیرے وکړي. ولې د رباط د عبدالله خان په مشره کښې ددې قبیلو غیر متوقع مخالفت د هغه منصوبه برباده کړله.

همدارنګه په سوات کښې د ګرځنده پلټنې موجودیت او د دې سیمې تر برې برخې پورې تلګ هغه مجبور کړو، چې خپله اراده ترک کړي. او بیرته کوهستان ته لاړ شي. د دې نه روستو داسې ښکاري لکه چې هغه د خپلو جنونی هلو ځلو بوچوالے محسوس

کړے دے، ځکه چې د پېرنګی حکامو سره ئې د رابطې هڅه کړې ده. او د دوئ سره ئې د دوستۍ پېشنهاد وړاندې کړے دے.

۵۔ په دیر کښې په دې وروسته وختونو کښې بنیادی مشر شیوه باباؤ. هغه غالباً په ۱۸۹۲ء کښې حق ورسېد. او د دیر په یوه بانډه هریانکوټ کښې خاورو ته وسپارلے شو. د هغهٔ مزار له ډېر خلک راځي. د دیر نواب هم چې کله نلجوړه شي نو د دهٔ په مزار حاضري کوي.

۶۔ په دیر کښې داوخت د تولو نه اهم مذهبی شخصیت پلم بابا دے، چې د داروړې خواته په پلم کښې اوسېږی دخپتې په حساب هغه د افغانستان دے. د هډې مُلا پیروکار دے. او د ماتکي ملا سخت مخالف دے، د پېرنګی د حکومت سخت دښمن دے. او په پېرنګیانو او د هغوئ په کارونو د بدوئیلو یوه موقعه هم د لاسه نهٔ ورکوی. هغه ډېر حساس او ټینګ عقیده پرست دے او د چترال ریلیف په وخت کښې ئې د دې د پاره ځان د ځمکي د نه په یوه کوټکی کښې بند کړے ؤ، چې د کافرو بوئ هم ورنهٔ شي. په ۱۸۹۸ء کښې هغهٔ په دې وجه د روژې میاشت د لېونی فقیر سره په سوات کښې تېره کړې وه، چې د هغهٔ په خیال په دیر کښې دینداری نهٔ وه. وروسته بیا هغه پوهه شو چې د هغهٔ خپل ولکوتوب د هغهٔ د شهرت په لاره کښې خنډ دے.

اوس هغه نسبتاً غلي دے ولې بيا هم زهريله دے

۷ - په دير کښې يو بل اهم مذهبي مشر د سد و خوا ته د تيمرګرې خواجه دے . هغه ډير کلک عقيده پرست دے خو اوس بوډا شوے دے . په ۱۸۹۷ء کښې هغه زموږ خلاف ډير فعال رول کړے و . هغه ډير زيرک سړے دے لو که چرې حالات ډير مناسب نه وي، نو د هغه د از يرکتيا به هغه زموږ سره د دښمنانه رويې د اظهار نه منع کوي هغه نه د هغې ملا ملکرے دے او نه د مانکي ملا مرستيال دے اثر ئې په ملېزو کښې دے .

د پورته ذکر شويو مشرانو نه علاوه نور ډير کسان په مقامي رول د مذهبي پاکوالي شهرت او اثر لري، خو په عمومي توګه د اهميت وړ نه دي . د ۱۸۹۷ء د جنوبي پاڅون د بيلات له کبله هغه مذهبي مشران د خلکو د نظره غورځيدلي دي . چا چې د دې پاڅون تابيا کړې وه . ډير يکښې په دې هڅه کښې دي چې خورې اهلې خلې وکړي، او خپل بايللے مقام بېرته حاصل کړي . سړے په يقين سره نه شي ويلے، چې د دوي په کراماتو د خلکو تکيه شوے يقين به بېرته جوړ شي او که نه . که چيرې يو نوے سړے را مخکښې نه شي . نو د جهاد د پاره د خلکو د پاڅولو په لړکښې نسبتاً زيات، مؤثر ثابتيدلے شي . البته په دې سلسله کښې به هغه لو مړے د موجوده منلي شوي مذهبي مشرانو د پېښه ورانه (مسلکي) حسد

سره مخامخ کېږي .

## زيارتونه

په دير، سوات او باجوړ کښې د بيلابېل اهميت زيارتونه په درنګ کوو دی. په دې ټولو کښې زيات مشهور او د کښې ګومې زيارت د پير بابا دے، چې د سوات د سرحد نه بهر په بونېر کښې واقع دے. په دې پسې د اهميت له نظره د سوات د اخون زيارت راځي، چې د بر سوات په سيدو کښې واقع دے. د اسلامي نړۍ د ټولو برخو نه د ډېر زيات خلک چې ديندار او عام الناس پکښې شامل دی دې زيارتونو ته راغونډېږي. او د شمال مغربي سرحد د نورو ملا شوي سړي تعليم ترهغه وخته بشپړ نه ګڼل کېږي ترڅو چې يې د دې زيارتونو سلام نه وي کړے. واړه زيارتونه په سوونو دی. چې هر يو يې د يوې يا بلې ټولنې په نظر کښې خاص اهميت لري. ځنې پکښې داسې دی، چې د ځينې خاص ناروغيو د علاج په لړ کښې مؤثر مشهور شوي دي.

## کردار

د يو اړخ نه پرته (علاوه) نور داسې سنګاري، چې د دې خلکو کردار د نورو پښتنو نه ډېر کم توپير لري، کوم

عیبونه چې په نورو پښتنو نسلونو کښې دی هغه په دوی کښې هم شته. او په غرور، مینه، بدل اخستلو او ټګۍ (دغلۍ) کښې د هغوئ نه روسته نه دی. د ټګۍ په حواله شاید دا خلک په پښتنو کښې لومړے مقام ولري. د دوئ سپېڅلتیا هم یو شان ده، په مېړانه، بهادرۍ، او میلمه پالنه کښې د نورو پښتنو سیال دی. د دوئ وهم پرستي شاید د نورو پښتنو نسلونو نه زیاته وي. په خپلو کښې هم دا خلک د یو بل نه توپیر لري. خو بیا هم د باجوړ د ترکلاڼي قبیلې خلک امکان لري چې د دیر او سوات د خلکو نه زیات مېړني او زړه ور وي. څه وخت وړاندې د سوات د خلکو مېړانې او جنګي صلاحیت ته اهمیت نه ور کول کېده. ولې د ۱۸۹۵ سنه او ۱۸۹۷ سنه واقعاتو مونږ ته دا سبق راکړو چې په دې لحاظ د سوات د خلکو صحیح اندازه نه وه اخستے شوې.

اتمانخېل د دیر، سوات او باجوړ د خلکو په نسبت د بدل اخستلو په سلسله کښې زیات سخت دی او د ښمنۍ ئې ډېرې خطرناکې وي.

په مجموعي ډول د دیر او سوات خلک چې کله د نورو ځاینو د پښتنو سره مقایسه کړو. نو په یو لحاظ دوئ د خپلو ګاونډیانو نه توپیر لري، او هغه دا چې په دې خلکو کښې د نظم ونسق روحیه موجوده ده، تر یو څه حده دا روحیه د باجوړ خلکو ته هم وررسېدلې ده، خو په کمه سویه، او بیا د دې نه هم

په کمه اندازه په اتما غښلو کښې موندلے شي ، هغه نظم ونسق چې د کلي وګړي د قابو لاندې ساتي ، او هغه مؤثر اختيار چې جرګه ئې د کلي د معاملو او قبيلوي مفادو په لړ کښې لري د توجه ور دی . په دې کښې شک نشته چې دا روحيه د پښتوانه رارواں د خلکو سره د مربوط حکومت د نظام له کبله پيدا شوې ده ، او له هغې وجې نه ډير تاکلی وخت نه روستو نه ځمکې د ويش پيچلے نظام تر اوسه پورې مروج دے . که چرې د دې خلکو په پيدائشتي ډول د نظم ونسق روحيه نه لرلے نو په دې نظامونو کښې ډير نه هم داسې کار اخستل ممکن نه وو لکه څنګه چې تري اخستل کيږي .

دا خلک وهم پرست دی . او په دې وجه ئې مذهبي طبقې په اسانه د ورانکاريو د پاره راپا څوی . که چرې داسې نه وے ، نو د ډيره سولت او حتی باجوړ خلک د پر په اسانه په قابو کښې راتلے شي او حکومت ور باندې کيدلے شي

لکه څنګه چې ور باندې د مذهب د سرخط لاندې ذکر وشو دا خلک په انفرادي ډول جنونيان ښيې نه دی . د غازيتوب رجحان په دې علاقه کښې په عمومي ډول وجود نه لري ، په دې خبره کښې هغه وخت زيات زړه راکښون پيدا شي . کله چې مونږ دا مسئلې ته په دې علاقه کښې د ملا يانو د شمار او زمونږ نه د هغوی د کړکي په تناظر کښې وګورو . اجتماعي جنونيت کوم چې درا پاريږو په صورت کښې دا خلک لري . د دوی د کردار په د توجه ور ارخ

دے، دا خبره یقینی ده چې دا هم د د وې د نظم ونسق د پیدائښ
روحیې، کومې ته چې پورته اشاره وشوه په وجه دے، او
هغه جنونیت چې د مشرانو د ماغونه ورداخل کړے شوے وی
په ټوله ټولنه اثر کوی. سره له دې چې په بېلا بېلو غرو کښې
انفرادی جنونیت موجود نه وی.

## د حکومت نظام ـ قبیلوی او د عام خلکو سره مربوط

په لومړی نظر کښې سړی ته دا حقیقت واضح شی، چې
په دې علاقه کښې د اقتدار څو منفرد شکلونه وجود لری چې
دیوبل نه نه یواځې دا چې د قبیلو په سویه توپیر لری
بلکې د یوې قبیلې په بیلا بیلو برخو کښې هم فرق لری، د
دیر د خان او د ناوګی د خان د حکمرانۍ شکل بادشاهی او یا
حتی مطلق العنانیت (Autocracy) ته ورته ښکاری.
د دیر او باجوړ د وړو خانانو حکمرانۍ د اشرافی نظام نمونې
وړاندې کوی. په داسې حال کښې چې په ټوله اتما نخیل
د سوات په یوه لویه برخه او زیاتره باجوړ کښې سپیڅلے
جمهوریت موجود دے. بیا هم د ژورې مطالعې په نتیجه
کښې سړے دې حقیقت ته رسی، چې دا توپیرونه هسې خوړه
ظاهری ډول ډیر ښکاری، ولې په حقیقت کښې داسې نه دی
هدغه د خلکو سره مربوط جمهوری نظام په دې ټوله علاقه

کښې موجود دے، او په حقیقي شکل کښې دے. خو بیا هم لږ غوندې اثر وربانډې د پورته ذکر شوو څوکسانو د حکومت ( Oligarchy ) د مختلفو شکلونو موجود دے

په دې خبره د پوره پوهېدلو د پاره ضروري ده چې په هغه مشترک او د خلکو سره مربوط نظام پوه نظر واچوو، کوم چې په لرغونو وختونو کښې د دې علاقې په ټولو اوسېدونکو قبیلو کښې موجود وُ. لکه څنګه چې د ځمکې د میعاد په تبصره کښې واضح شوېده، دا ټوله علاقه چې د پښتنو په قبضه کښې وه . د هغه قبیلو په منځ کښې وېشلې شوې وه، چا چې فتح کړې وه، یعنې اکوزیه یوسف زیه، ترکلاني او اتمانخېل قبیلو ترمنځ. یوسفزیه قبیلې دیر او سوات نیولې وُ، د جندول په شمول باجوړ ترکلانو نیولې وُ - او اتمانخېلو هغه علاقه قبضه کړې وه، کومه چې اوس د هغوې د قبیلې په نوم یادېږي. د اعلاقې د پخواني رواج مطابق د قبیلو د خېلونو او بیا د عزیزولیو ترمنځ بیا بیا تقسیم شوې دی، بیا هر فرد ته د هغه دخېل د ځمکې (دفتر) نه مساوي حصه ورکړې شوېده د دې حصه لرونکي ته (دفتري) وائي، تر څو پورې چې دے دا خپله حصه برقراره ساتي، نو پښتون بللے شي او د قبیلې یا کلي په جرګه کښې خبرې کولے شي.

( د ۱۹۷۱ سنه ء په ایډیشن کښې د اوضاحت شویدے چې په دې علاقو کښې د پښتنو د حکومت د پاره د جمهوري تکے

په دې لحاظ په محدودو معنو کښې استعمال شوے دے چې دلته اقتدار په پوره توګه د دفترې پښتنو په لاس کښې دے کسب ګر، فقير، کروندګرې، ملاتړ، ډم وغيره د ووټ، حق نه لرې او په عملي ډول د غلامانو غوندې ژوند تېروي)

د هرې قبيلې د خېل په ګمکه باندې ډېر کلي اباد وي د قبيلې د خپلواکه حکومت حکم نه يواځې دا چې په نسبونواو خېلونو کښې چلېږي بلکې په هر يو کلي کښې هم منلے شي. د کلي ټولې معاملې د کلي جرګه سرته رسوي، د هر کلي نمايندګان د خېل په جرګه کښې. د خېل نمايندګان، د نسب په جرګه کښې د نسب نمايندګان د ټولې قبيلې په جرګه کښې موجود وي.

په پښتنو کښې په يوه مسئله د اتفاق امکان ډېر کم وي نو ځکه دلته د ډلې د حکومت نظام په وجود کښې راغلے دے په هر کلي کښې دوه ډلې وي، چې د هرې ډلې خپله جرګه وي کومه ډله چې د شمېر يا اثر په حواله مضبوطه وي، نو د څه وخت دپاره د دغه ډلې حکومت وي (دې ته باندې ډله وائي) د کلي په ټولو معاملو کښې اختيار لري، فيصلې کوي، او د کلي ګټه وټه په خپل قابو کښې ساتي. د مخالفې ډلې (لاندې ډله) جرګه تر هغه وخته د برسراقتدار ډلې په مرضۍ چلېږي، تر څو چې ئې خپل شمار دومره زيات شوے نه وي، چې حکومت چيلنج کړي. د يو څو ورځو مسابقه (Match) چې عموماً د جګړې په

شکل کښې وی، معامله دیو یا بل فریق په حق کښې فیصله کړي او کټونکې ډله د اقتدار واګې په لاس کښې واخلی ـ دا ډلهایز نظام په ټوله قبیله کښې موجود وی، او دکلیو د دې پارلیمانی مسابقو په نتیجه کښې چې کومې جرګې جوړې شی، د هغوې په بنیاد بیا قبیلې په لویه جرګه کښې دیوې یا بلې ډلې د قوت تعین کوی.

[ د ۱۹۶۱ء کال اپله بشن زیاته کړیده چې په بر سوات کښې لاندې ډلې شرونکې وې ـ مطلب دا دے چې دا ډلې ترهغې د کلی ته بهر وی ترڅو چې مخالفه ډله په اقتدار کښې وی ـ شړونکې لاندې ډلوته په حینې ځایونو کښې اجازه ورکول کیږی، چې خپلې ځمکې د دهقان یا فقیر په ذریعه وکري او حاصل ئې واخلی، او په ځینو ځایونو کښې د هغوئ دفتر باندې ډله قبضه کوی، او په خپل کار ئې راولی.

بیشکه چې په دې نظام کښې جنګونه ډیر کیږی په بر سوات کښې د اقتدار بدلون بې د جنګ نه سرته نه رسی. همدا وجه ده. چې سره له دې چې د ډله ایز حکومت نظام اوس هم په کوز سوات کښې جاری دے، ولې هغه زړه طریقه چې لاندې ډله به پکښې د کلی نه شړل کیدله، له منځه تللے دے ].

دا ټولې چارې دیو نا لیکلی ولې په پراخه توګه منلی شوي بنیادی قانون لاندې سرته رسول کیږی. که چرې د یوې ډلې جرګه په غیر ائینی طریقو اقتدار واخلی. یا د اقتدار

په وخت کښې د اختیاراتو نلجائز استعمال وکړی، نو چې کله اقلیت ته لاړو شی، نو بیا ورته په ابنبه سترګه نه کتل کیږی.

د اپورتنی د خلکو سره مربوط ډلهایز نظام په هغه ټوله علاقه کښې موجود دے، کومه چې ددې رپورټ په برکښې راځی. البته لکه چې لاندې به ذکر شی په ځینو ځایونو کښې د اشرافی حکومت د رامنځ ته کیدلو له کبله په دې نظام کښې لږ لږ بدلونونه شوی دی.

اګر چې دکشیوری له نظام د هر دفتری په جرګه کښې برابر حیثیت وی. ولې ځینې کسان د ذاتی قابلیت، بزرګئ، لیاقت سیا چل د سیسې په برکت د نورو په نسبت زیات اثر پیدا کوی او د ټولنې د خدمت په صله کښې هغوئ ته سېری ورکولے شی. په ځینې واقعاتو کښې دا اثر نه یواځې دا چې د هغوئ لولاد ته واوړی بلکې په هغې کښې لا اضافه وشی. او بالاخره د ځینې کورنیو غړی جدی خانان جوړ شی. د اخانان د اهمیت له نظره بیلابیلې درجې لری، ځینې جدی خانان د اسې وی، چې د حکمرانې کورنۍ نمایندګی کوی یا د اسې وېلے شو، چې د ټولې قبیلې، ځنې د قبیلې د یوې برخې او ځنې صرف د یو کلی خانان وی. د خلکو سره مربوط ډلهایز حکومتی نظام د کم اهمیت لرونکو خانانو اختیار په دې لحاظ کم کړے دے، چې د دوئ د پاره ئې دا ضروری کړېده، چې دوئ به خپل ځانونه د یوې یا بلې ډلې سره تړی. د هرې کورنۍ په تاریخ کښې ددې کورنۍ یو غړی، چې د خان ځوئ یا ورور وی، د مخالفې ډلې

مشری کړېده. او بیا د وخت تېرېدو سره سره د هغوئ اولاد د دغې ډلې جدی مشران جوړ شوی دی.

دا قسمه واقعات په سوات کښې په خصوصیت سره موجود دی. ځکه چې دلته جمهوری احساسات نسبتاً زیات زور دی. په سوات کښې چې چرته هم خان په نظر راځي. نو مخالف خان ئې هم د دغه ځائې وی. مثالونه ئې د مینګورې، الهډنډ. و غیره مخالف خانان دی. له دې کبله دې خانانو خپل حیثیتونه محض د خپلو سیاسی ډلو د مشرانو مقام ته راغورځولی دی.

په تانه کښې یو بل د توجه وړ کیس موجود دے چې د جمهوری احساساتو د شدت څرګندونه کوی. د تانې د خانخېلو جرګه په ائینی ډول ډېر په کوتلی شکل کښې د حکومت ډله ایز نظام پېش کوی. د دې جرګې ټول غړی خانان دی. چې په دوئې کښې دوه د دوؤ مخالفو ډلو جدی مشران دی.

د سوات بنیادی (اساسی) خانان په حقیقت کښې د با اثره ملکانو نه لږ څه لوړ مقام لری، او ذاتی اثر ئې د هغه حیثیت نه زیات نه وی، کوم چې دوئې ته د خپلې ډلې جرګه ورکوی. نو داسې وئیلې شو، چې په سوات کښې د حکومت یو پاک جمهوری شکل موجود دے. او همدغه حال د سمرانیزیه او اتمانخیلو هم دے.

د باجوړ په زیاتره علاقو کښې هم دا نظام په خپل اصلی شکل کښې موجود دے. او صرف په هغه برخو کښې ئې وخت په

وخت بدلونونه راوستل شوي دي. کومې چې د نلوګې د خان، صفدرخان د اختیار لاندې پاتې شوې دی. په دې برخوکښې هم ډله ایز د خلکو سره مربوط نظام په خپل حال پاتې دے، خو د بادار یعنې د ناوګۍ د خان د کنټرول سره مشروط دے. د ناوګۍ د خان مطلق العنان حکومت په بیلا بیلو سیموکښې د هغهٔ د فوځي قوت په تناسب په بیلا بیل ډول موجود دے. د ترکلانړو د قبیلې د مشرې کورنۍ (ابراهیم خېل) د مشر په هیڅ د ناوګۍ خان هسې خود ټول باجوړ مشر بللے شی. خود هغهٔ په برخه یوه هنګامه خېزه (یاغی) علاقه رسېدلې ده. اولهٔ دې کبله د هغهٔ اختیار وخت په وخت د تغیر سره مخامخ شوے دے. کهٔ رښتیا شی نو هغه په مستقل ډول د باجوړ د ماموندو، سالارزو او نورو قبیلو سره د جنګ په حالت کښې دے. دا قبیلې کله کله هغه خپل مشر ومنی، ولې اکثر ترې انکاري وی. د هند حکومت هغه د باجوړ ستر مشر منلے دے. او لس زره روپۍ سالانه ماحب ورله ورکوی.

هغهٔ د خپل اختیار لاندې علاقه په اتو[8] وړو وړو خانیو کښې وېشلې ... هر یو خان په خپله سیمه کښې د خلکو نه د هغوې د پیداوار لسمه برخه د عشر په ډول اخلی. د دې نه علاوه دا خانان جبری فوځي خدمات (ملاتړ) هم ورکوی، د په دې دوه حوالو دا خانان د هغه داخلی جمهوری طرز حکومت سره نو پیرلری، د کوم ذکر چې وړاندې شوے دے.

په خاص دير يعنې په هغه سيمه کښې کومه چې د پنجکوړې د سيند پورې غزيدلې ده هلته د خلکو سره مربوط communal حکومتي نظام موجود دے. ولې بيا هم دلته يو مطلق العنان حکومت وجود لرى، چې د زير رپورټ علاقې د نورو برخو په نسبت زيات منلے شوے او واضح دے.

د دير نواب محمد شريف خان د هغه کورنۍ ميراثي مشر دے، کومې ته چې د دې د بانى "اخون بابا" د بزرګۍ له کبله لخوښت ېل وائي. او په دې علاقه کښې حکمرانه کورنۍ جوړه شوې ده، هغه د دير جندى مشر دے او د دې ځاى ټولو قبيلو په دې حيث منلے دے. د خان د اختيار لاندې په بنيادى علاقه کښې د جندول اضافه شوې ده. جندول د ناوګۍ د خان او د سوات د سيند د بنى غاړې د قبيلو (چې د هند حکومت نواب ته حواله کړې وې) سره د يوې معاهدې لاندې د دير نواب ته ورکړے شوے دے.

هغه ته د حکومت له خوا پنځه لس زره (۱۵۰۰۰) روپۍ ماجب ورکړل کېږى. او لس زره روپۍ سالانه د هغه چونګى په عوض کښې ورکوى، کوم چې به د دير خانانو د دې علاقې نه د تېرېدونکى تجارتي مال په سر اخستلو. حکومت د لېوې د هغه پېرې خرچه هم منى، کومه چې د دير نه ترچترال پورې د سړک د ساتلو د پاره مقرر شوې ده.

د دير د جندى مشرعه او د حکومت د مالى او اخلاقى مرستى له کبله د دير د نواب په حکمرانه کښې نه لوېرې نظر د

مطلق العنانیت رنګ په نظر راځي. ولې په حقیقت کښې داسې نه ده د خلکو سره مربوط اوجمهوري نظام حکومت د دیر په ټولو قبیلو اوهم د جندول او سوات په هغه قبیلو چې اوس اوس په دیر کښې شاملې شوې دی کښې په خپل اصل شکل کښې جاري دے ، د دې قبیلو نه د پیداوار د لسمې حصې یعنې عشر د اخستلو نه اخوا (پرته) د نواب نور مراعات په حقیقت کښې لږ لو په ظاهره زیات دی.

د دیر علاقه په ډیرو ورو ورو خانیو کښې وېشلې شوې ده ، چې یا ورپابندې د مقامي جدي خانانو اختیار دے او یا د دیر نواب د خپلو خپلوانو ، چاته چې هغه د دې علاقې ځینې سیمې حواله کړې دی. دوي د دې ځایونو عشر اخلي ، ولې د دې سیمو د حکمرانۍ هغه نظام چې د خلکو سره مربوط دے نه متاثره کوي.

د جندول او دیر د خانیو په حواله یوه د توجه وړ خبره کومه چې په دې علاقه کښې د فیوډلی عنصر اظهار کوي دا ده چې د دې سیمو خانان په خپلو نومونو ډیر کم بللے شي او اکثر د خپلو خانیو په نومونو یادیږي . دا خانان په خلکو کښې د شبرمحمد خان ، امیرمحمد خان ، مجاهد خان ، یا سید احمدخان په ځای ، داتې خان ، بېباور خان ، بتهل خان ، بارو خان وغیره نومونو سره یادیږي . دا رواج تر دې حده زیات دے ، چې د خان نزدې خپلوان هم کله کله په دې نوم یادیږي.

د مثال په ډول د مجاهد خان (څوک چې اصل بهمل خان دی) نه علاوه درې کسان نور هم په بهمل خان مشهور دی.

دا رواج د توجه وړ دے، ځکه چې دا په مجموعي ډول د خلکو د جمهوري غرائزو جبلت خلاف دے او د پښتو په علاقو کښې بل تقریباً چرته هم نشته، څو مثالونه ئې په باجوړ کښې هم شته، چې د خارخان، جارخان او ناوګي خان نه عبارت دی. همدارنګه په بر سوات کښې هم کله کله خلک پتي ه خان اوشين خان يادوي.

په دې لړکښې مونږه پوره بحث وشو، چې د ظاهري توپيرونو باوجود په دې ټوله علاقه کښې طرز حکومت سوچه جمهوري دے، او د مقامي مطلق العنانيت و رباندي ډير کم اثر شوے دے، د دې ثبوت دا دے، چې که چرې د لويو خانانو په شکل کښې موجود مطلق العنانيت ختم هم کړے شي نو په موجوده د خلکو سره مربوط حکومتي نظام باندې به ئې هيڅ اثر هم پرې نه وځي. د وړو خانانو د خاتمې په شکل کښې دا امکان شته چې دا نظام متاثره شي. خو صرف په دې وجه چې د وې ځپلو د دې جمهوريت غړي دی.

# د کابل سره د دیر، سوات او باجوړ د قبیلو تعلقات

د ۱۸۹۵ء نه یعني د دې علاقو ته زمونږ د راتلو نه وړاندې دا د دیر و مشرانو طریقه وه، چې کابل ته به تلل. د امیر په دربار کښې به لې حاضرې وکوله او دغه نه به لې د پیسو په شکل کښې وظیفه اخستله، ځینې خاص قبیلو او افرادو ته به د امیر له خوا سالانه ماجب ورکړے کیدلو. دا په یقین سره وئیل ګران دی، چې دا به څه وو داسې ښکاري چې ماجبونه به د اتما نخیلو ځینو نسبونو ته ورکړے کیدل، د ناوګئ خان ته به (۱۳۰۰) روپۍ سالانه ورکړے کیدلې، د کونړ او برسوات یو زیات شمیر مشرانو په ناتا کلي ډول واړه واړه ماجبونه اخستل.

د هندوستان او افغانستان د پولې په حواله د ۱۸۹۳ء د هند افغان معاهدې نه روسته داسې ښکاري لکه چې امیر دیر ماجبونه بند کړي وي، البته ځینو کسانو ته لې جاري ساتلي دي. په خاص ډول حاجي امیر زمان خان چې شموزي اوتما نخیل ملک دے، او ماجب لې د (۲۰۰) نه تر (۳۵۰) افغانیو پورې سالانه دے. او فتح محمد خان چې د جار د خان ولایت خان ورور دے او سالانه ماجب ئې (۲۰۰) افغانۍ دے. آدم خان او ارباب خان چې اتمانخیل ملکان دی، او اوس ئې امیر ته د خپلو زړو ماجبونو د تجدید د پاره درخواست

ورکړے دے، او د دې نه داسې معلومېږي، چې دوئ هم ماجب خوارهٔ وو. د پورته ذکر شوو کسانو نه علاوه ځنې افراد داسې دي، چې د کورنیو جګړو یا نورو اسبابو له کبله ئې په افغانستان کښې پناه اخستې ده، امیر ورسره ښهٔ سلوک کړے دے. او د ژوند تېرولو د سامان تابیا ئې ورله کړې ده. په دې سلسله کښې د زیاتو اهمو کسانو د جملې نه د جنډول عمرخان او عنایت الله خان دی. عنایت الله خان د دیر د نواب ورور دے، چې په کابل کښې اوسېږي او ویلې شي، چې سالانه (۶۰۰) روپۍ د امیر له خوا د دهٔ د پاره مقرر دی.

د دې پورته ذکر شوو ماجب خورو نه علاوه په تول دیر، سوات، او باجوړ کښې ډېر کسان داسې شته چې د افغانستان د پاره د مخبرۍ او خبر رسانۍ په کار مقرر شوی دی. په دوئ کښې د ځینو تقرری په کونړ کښې افغانی افسرانو او د ځینو په پېښور کښې د امیر ایجنټانو کړې ده.

د مذهب او ملائیت سره تړلې طبقې په دې علاقه کښې ډېر زیات مشهور لري. ولې د هغوئ د هغه بنیادی ایجنټی پته لا تر اوسه نهٔ ده لګېدلې کومه چې د سیاسی او جنون پرسته د سیسو د جوړولو او وراندې کولو د نده تر سره کوي، د ۱۸۹۷ء د واقعاتو د تاریخ نه دا معلومېږي، چې د دې

ایجنسی نه د افغانی پولې افسرانو څومره په لویه پیمانه کړاخستے وُ.
په باجوړ کښې د افغانانو له خوا جوړې شوې د سیسې تل پر یمانه وې
په جلال آباد او کنړ کښې په پراخه پیسې د وُل د ګورنرانو (والیانو) دا
پالیسی پاتې شویده چې په باجوړ کښې معاملې په خاموشه سره سر
ته ونه رسی. د ناوګۍ د خان خلاف د ماموندو او سلارزو د را
پاڅولو یوه موقعه لې هم د لاسه نه ده ورکړې، او تل لې دا
هڅه کړیده، چې د خان او د هغه د قبیلو تر منځ روغه رانه شی.
همدغسې حال د مېټې د موسیٰ خېل مهمندو هم دے.

## په دیر، سوات او باجوړ کښې د حکومت له خوا مالی مرسته او ماجبونه

د هند د حکومت له خوا هر کال (۵٦,۰۱۰) روپۍ د
دیر سوات او باجوړ قبیلو او مشرانو ته د مالی مرستې په
توګه ورکول کېږی (د دې نه (۱۵,۰۰۰) روپۍ د دیر نواب
ته (۱۰,۰۰۰) روپۍ د ناوګۍ خان ته (۸۰۰۰) د دیر قبیلو
لو نورې پاتې بېلا بېلو خانانو او ملکانو ته ورکول کېږی)
د ۱۸۹۵ ع نه یعنې د دې علاقې ته زمونږ د راتللو نه وړاندې
په دیر او سوات کښې د تجارت په مال چونګی اخستل کېدو
دا چونګی به هغه قبیلو او خانانو اخستو، د چا د حدودو نه چې
به دا مال تېریدلو - د دې د پاره چې په دیر او سوات کښې

د شوکي مخنيوے وشي او تجارت په ازاد مټ وده وکړي، د حکومت له خوا د هغه چاد پاره سالانه ماجونه مقرر شو، چاچې دا چونګی د خپلې کمټې وټې ذريعه (وسيله) ګرځولې وه، او په دې طريقه د راټلونکي وخت د پاره چونګے ختم کړے شو (د چونګی د معاوضې په ډول چې کومې پيسې ورکول کېږی، هغه شل زره سالانه دی، چې لس زره پکښې د دير نواب اخلی )

## زراعت

په دې علاقه کښې پريمانه کرونده کېږی، د ويش د نظام له کبله چې ټوله ځمکه پکښې د يو تاکلی وخت نه روسته بيا تقسيمېږی . دا ديو کرونده ګری د پاره ناممکنه خبره ده چې د خپل ضرورت نه د زيات حاصل د اخستلو د پاره په ځمکه زياته خواری وکړی او زياته توجه ورکړی، ولې بيا هم ځمکه دومره زرخېزه ده، چې په لږه خوارۍ هم ښه فصل کوی .

د دې علاقې بنيادی فصل وريجې دی . دا فصل په هغه ټولو ځمکو باندې کرلے شی، چې نهری وی، او يا د غرونو د خوړونو نه اوبه کېږی . د برسوات په ځينو علاقو کښې غاليکې او مانيار کښې چې د وريجو کوم قسم پيدا کېږی هغه په ټول پنجاب کښې شهرت لری او ويلې شی چې د پېښور

د بارا وریجو نه ئې هم نمبر وړے دے. د منی د وریجو د فصل نه وړاندې په سپرلی کښې په نهری ځمکو د څارووو د ګیا د پاره شفتل کرلے شی په بارانی ځمکو د سپرلې د فصل په توګه زیاتره د غنمو، اوربشو او دالو کر کیږی، جوار او زدن هم د منی فصلونه دی. د زیات باران په وجه د سمرانیزیه نه بریته نور د دې علاقې په ټولو ځایونو کښې سبه کیږی. او ډیر کله کله خطا کیږی.

## د ځمکې د ټاکلی وخت نظام

د ځمکې د ټاکلی وخت نظام په دیر، سوات، باجوړ او داتما غیلو په علاقه کښې په یو ډول موجود دے، د کله نه چې د دې علاقې موجوده مالکان د جنوب مغرب نه راغلی دی، نو د دغه وخت نه تر اوسه پورې په دې نظام کښې هیڅ بدلون نه دے راغلے، او که راغلے هم دے نو د نیشت برابر دے. په دې لړ کښې که په تفصیل سره بحث وشی نو دلچسپ به وی. لکه څنګه چې د دې نظام د اصلی لرغونی شکل نه څرګندیږی د پښتنو د ځمکې دا نظام په پخوانو وختونو کښې په هغه ټولو قبیلو کښې موجود ؤ — کومې چې د سلیمانی سلسلې د مغربې علاقې نه هندته راغلې وې، او س په پنجاب او نورو علاقو د دې نظام لرغونے شکل د منځه تللے دے، او نوے پر مختللے

شکل ئې اخستے دے .

دا علاقه چې کله پښتنو ونیوله . نو ټوله ځمکه د هرې قبیلې د نسبونو په منځ کښې وویشل شوه ، د هر نسب برخې (دفتر) ته به تپه ویلے شوه . هره تپه بیا د نسب د عزیزولیو په منځ کښې وویشل شوه او د هرې عزیزولۍ د فتر بیا د دوئ د غړو په منځ کښې په وړو حصو یا برخو ووېشل شو .

هر هغه کس چې په دفتر کښې ئې برخه لرله (کهٔ لږ وهٔ هم وه) هغهٔ ته دفتری ویلې شو . د دفتري اهمیت دومره ډېر وُ ـ چې کهٔ چرې چا به د ځمکې خپله نیکنۍ برخه لهٔ لاسه ورکړله نو هغه به د دفترۍ نه پاتې کېدلو ، او لهٔ دې نه پس به ورته چا پښتون نهٔ ویل ، یعنې فقیر به شو او د کلي یا قبیلې د جرګې نه به بهر شو .

د دې د پاره چې هر دفتري ته دا رزښت لهٔ نظره سا ؤی ځمکه په لاس ورشي . د خپل ځمکه به د ښې یا بدې او د اوبه خورۍ د اسانتیاؤ په رڼا کښې په ونډو وټو کښې تقسیمه چې هر ونډه ځانته خپل ځانګړے نوم درلود . د ځمکې کچ به د ځینو ملي شوو وحدتونو په حساب کېدو (د دې وحدتونو له به په هر ځائې کښې بیلابېل نومونه ورکړے شوي وو . لکه بخره ، روپۍ ، پیسه ، توره ، غوایه ، نیمکې ، تیراؤ ، پاؤ وغیره ) . د هر دفتري ځمکه به په یو ځائې کښې یو ټوټه وه ، بلکې

اکثر به د پلاټونو په شکل کښې وه، چې د یو بل نه به مختلف هم وو. او په څو ونډو ونو کښې خواره واره هم.

هر خیل به په خپله ځمکه کلی جوړوَل، ځنې وخت یو کلے او ځینې وخت څو کلی. ځینې کسان به داسې وو، چې د هغوئ خدمت به د جنګ جګړې یا د عباداتو په لړ کښې د ارزښت وړ وو. نو د ځمکې یوه ټوټه به د هغوئ سره د لاس امداد په خاطر د عمومي ویش نه پرېښودلې شوه، او هغوئ ته به سپارلے شوه، دا پرېښودلے شوې ځمکه به ځینې وخت د کلی زورور خان یا د کلی یا د قبیلې جرګې ته ورکړے کېدله خو اکثر به د کلی ملا، سید، میاں، اخونزاده، صاحبزاده یا بلې د مذهب سره تړلې طبقې ته بخښلے کېدله.

دې ځمکې ته سېرۍ وائی، د سېرۍ ورکولو وجه تل دا نه وه چې کښې دا خلک بې غرضه سخیان وو. ځکه چې دا ځمکې به اکثر یا خو د دوو ټولنو (Communities) په منځ کښې واقع وې یا به متنازعه وې او د دې د خوړلو د پاره به د داسې کسانو ضرورت وُ، چې یا به زورور وُ او یا به ورته مذهبی امتیاز حاصل وُ. د زور او یا د مذهبی امتیاز په برکت به دې کسانو دا ځمکه په خپل استعمال کښې راوسته او د باقي ټولنې د پاره به ئې د ډال کار هم ورکړې.

دا د ځمکې ویش پوره نظام تر ننه پورې موجود دے په دې حواله دا نظام پېچلے په نظر راځی، چې د هر دفتری

ځمکه په پرله پسې ډول د وراثت وغیره په ذریعه د بدلون سره مخامخ کېږی.

د قبیلې د ځمکو د بیا ویشلو نظام دا معامله نوره هم پېچلې ده، د دې ویش مقصد دا ؤ چې د ځمکو په برخوکښې مساوات قایم کړے شی، او د کومو کسانو یا نسبونو یا خېلونو چې د خپلو ګاونډیانو په نسبت خرابه ځمکه رسېدلې وی هغوی ته دا موقع په لاس ورشی چې د یو تاکلی وخت د پاره د ښې ځمکې خاوندان شی.

دا د تقسیم نظام چې خسنهی یا ویش ورته وائی په ټول سوات، دیر او باجوړ او د اتما نخېلو په علاقه کښې موجود دے (صرف په سمرانېزو کښې د منځه تللے دے) ویش یا خسنې په واریز ډول د هرې علاقې د رواج مطابق ۵، ۱۰، ۱۵، یا شل کاله پس کېږی، دا ویش یوازې د افرادو ترمنځ نه وی. بلکې لکه څنګه چې وړاندې ذکر وشو د نسبونو او خېلونو ترمنځ هم کېږی، حتی چې تېرې هم د قبیلې د نسبونو ترمنځ سره بدلولے شی، خو د ټولې تپې بدلون عام نه دے او د خېل او افرادو د دفتر خسنهی هرځائې موجود دے. د ځمکې سره د دې کلی کورونه، جماتونه او ټولې ابادی هم ځی. د ټولنې هر یو غړی ته د نوې ځمکې کلیو کورونو وغیره نه برخه ورکول کېږی صرف د سېرۍ ځمکه د ویش نه بهر ساتلے شی.

څرګنده خبره ده چې دا نظام د جنګ جګړې د پاره د ـــ

حالانو د پیدا کولو یوه سبب وسیله ثابتېدلے شي، که چرې یوې قبیلې یو نسب یا خېل ته د اسې ځمکه په لاس ورغلې وي چې د هغوئ په خیال د کاونډ یانو د ځمکې او کلیو نه ښه وي، نو د هغوئ کوشش دا وي، چې د خرابې ځمکې په بدل کښې ورته خپله د قبضې لاندې ښه ځمکه لاس نه شي نو د دې مقصد د پاره د وېش د ځنډ ولو د پاره بهانې لټوي. دا معامله اکثر زور ازمائي ته رسي، او خسنې په ډ زو کښې بدلېږي، نن سبا د بر سوات د بابوزي قبیلې د تپې په خسنې جنګ روان دے، هغه نسب چې د نورو کلیو نه علاوه لې د مینګورې اهم او سنبال کلے په قبضه کښې دے او په تجارتي لاره د اختیار لرلو له کبله د چونګې نه ښه پوره ګټه وټه لري، دې ته تیار نه دے چې دا ونډ پرېږدي، او په بدل کښې ئې په بل ځای کښې خواره او کم امدنه ځمکه واخلي. هغوئ وائي چې مونږ (۲۵) کاله په دې ځائې پاتې شو او خوک چې (۲۵) کاله په کوم ځائې پاتې شي نو هغوئې مستقل تصور کېږي. دویم فریق وائي: چې دا د خرابې ځمکې نه د ځان بچ کولو د پاره بهانې لټولې دي دوئې خپل تیارے کړے دے او په زور خسنې عملي کوي.

د لویو د نترو د تقسیم لا بنې لاخه کړې چې د افرادو په منځ کښې د ویش برخو تقسیم هم د برخو د ونکے او جنجالي کار دے. او دا کار چې کله هم سر ته ورسي نو د توجه ور وي، دا که یوې

خواته د هنر ځر ګندونه کوي، کوم چې د دې نظام کارکوونکي حاصلوي نو بلې خواته هغه نظم ونسق په ګوته کوي د کوم په برکت چې ولېش غځ تر دافرادو د برخې پورې سرته رسول کېږي.
د دې کار د پوره وضاحت د پاره بايد يو مثال وړاندې شي، په دې لړ کښې که هر چا مثال واخلو نو دا مقصد به پوره کړي، مثلاً جنګي خېل چې د اکوزي يوسفزي د طائفې برسلوزي يوخېل دے، په پنځه وړو خېلونو کښې تقسيم شوے دے يعني اصف خېل، عيسٰی خېل، مندن خېل، ماڼي خېل او علي خېل په دوې کښې د هريو شپږ کلي دي د دوېش په ذريعه علي خېلو ته د عيسٰی خېلو ځمکه سره د شپږو کليو ورکړے شوه د علي خېل ځانګي توله غرې به اوس دا د عيسٰی خېلو تولې ځمکه په خپلو کښې دافرادو د برخې مطابق په پچه تقسيموي .
متعلقه ځمکه درې قسمه ده، هغه ځمکه چې ويېجې کوي اود سيند نه اوبه کېږي، هغه ځمکه چې باراني ده، او په کال کښې دوه فصله کوي او هغه ځمکه چې باراني ده او په کال کښې يو فصل کوي، هدا وجه ده چې د جنګي خېلو د تولې د فتر د راروان خسنې تر وخته پورې د دې خېل خلک په خپلو کښې بيا بيا واريز تقسيم کوي. د دې طريقې کار په لاندې ډول دے:
د لومړي کال په آخر کښې تولې علي خېل د ويېجو په ځمکه د دوباره تقسيم د پاره پچه اچوي، د دويم کال په پای کښې دا عمل مرد وباره کېږي، په دريم کال د ويېجو د ځمکې سره سره په

دوه فصله ورکوُنکې بارانی ځمکه بانديٍ هم پچه اچولے شي. د خلورم کال په اخره کښې د وریځو د ځمکې نه علاوه په یو فصل ورکوونکې بارانی ځمکه هم خسنې کېږی او د شپږم کال په پاې کښې د جنګی خېلو ټول ځمکه بیا تقسیمېږی او علی خېل ټول په ټوله د یو ځاې نه بل ځاې ته ځی او د جنګی خېلو د پنځو خېلونو د جملې نه د یو ځاې اشغالوی، او په دې دوُل دا نه ختمېدونکې لړه جاري ساتی .

د قبیلوی او تولنیز نظم ونسق دیو مثال په دول که دا نظام هرڅومره زړهٔ راکښونکے لری. او د اختلاف او وینه توییولو د یوې دوامداره سرچینې په حیث که د یوې پښتنې قبیلې دپاره هرڅومره په زړهٔ پورې وی. ولې ترڅو پورې چې د تمدن د ودې تعلق دے. نو دا نظام د ځمکې دتپاکلی وخت د ناورې نظامونو د جملې نه یو داسې نظام دے چې سړے ئې په مشکله تصور کولے شی. په دې نظام کښې د هر سړي هڅه داوی، چې څومره کولے شی د تپاکلی وخت په دوران کښې د خپلې ځمکې خوازهٔ واخلی، هغه څهٔ لیږنے نهٔ دے، چې ځمکه به ښهٔ بوی، ونه به پکښې کری، او یا د ورابندې نه د ولاړې وبې ساتنه به کوی، او یا به د بل د پاره بن جوړوی، هم دارنګه د اوسېدلو د پاره د یوې عارضی کوډلې او یا کېږ نه علاوه او یا د کور یا کلی د داسې د یوالونو نه اخواچې کولهٔ وربانديٍ اثر نهٔ کوی، په

نورخته څان کړوُل او یا پیسې لګول بې وقوفي ګڼلې شي ، د دې نظام ناخوښه نتیجې په هرځای کښې په نظر راځي ، نه چرته بڼ شته ، نه باغ شته ، د زیارتونو د مقدسوځایونو نه بغیر ولې چرته یوه نیمه په نظر راځي ، حتیٰ چې جاتونه ئې هم کهُختهٔ ارزانه پریوځي ، نو د ختې اوکهٔ په ځانه کم خرڅ راځي نو د ځانې محض چتونه دی ، چې د ریږو ارخونونه ئې د ختې یا ګټې شاړ د ږوالونه دی . او په خلوړم ارخ د غولي نه هم راتاو شوېدی . هغه ځکه چې د پښتنو د دوُرنه د ډیر وړاندې راسې د سینډونو د نهرونو نه اوبهٔ کېدلې ، اوس هم د اوبو لاندې ده . او نوره توله ځمکه د فصل د پاره په باران پورې اړه لري سره د دې چې لوئي او پراخه سیمې په اسانه د اوبو لاندې راتلی شي ، خو په دې شرط چې په شریکه وړاندې کار وشي ولې په اصل کښې خبره داده چې یوه توله د بلې د ګټې د پاره ولې څان وکړوی .

صرف د سړی ځمکې بیا بیا نهٔ وېشل کېږی ، نو ځکه سړے وینی چې هم ئې ترپوحده پورې فصل ته د جوړولو کوشش کېږی او هم وړاندې د ابادی کولو د پاره زیار وېستل کېږی ، خو دا ځمکې هم عموماً د داسې طبقو سره دی چې کر کرونده ئې پېشه نهٔ ده . ارام طلبه دی . او د پرمختک خواهشمند نهٔ دی .

د ځمکې د وېش نظام په سمرانېزی کښې د منځه تللې دے

دا علاقه تر نزدې وختونو پورې د رانیزو د خاورې برخه وه، لو د هغوې اجاره دار و، تش پانو او ملاتړ به خوړله، د وې په فرې دول د ازادۍ اعلان وکړ، لو په خپل مقصد کښې کامیاب شول. د چا سره چې کومه ځمکه وه، هغه هم هغه ونیوله، د دغه وخت نه راپېښو نه خوبیا ویش نشو یدے او نه لې په راتلونکی وخت کښې امکان مشته.

د پښتنو د ځمکې د ویش په نظام کښې یو اجاره دار ته هم حواله که د کروندې سره لې تعلق وی یا د ټوپک ماریه سره، او یا د بل څه سره د ځمکې د خپلو لوحق نه دے حاصل.

د تللنه ایل بېټن زیاته کړېده چې د دې بحث په اخر کښې سړے دې نتیجې ته رسی، چې څومره دا قبیلې د ځائې په ځائې کېدلو د اثر لاندې راځي، نو د ویش د نظام د پرېښودلو چانس به یکښې زیاتېږي. داسې به ښکه چې لومړے د بارانی ځمکو په لرکښې کېږی او اخرې ته به د سولت د سیند د ورېجو ځمکې پاتې کېږی. کومې چې د توکښې یا احتکال (Erosion) د عمل سره مخامخ دی.

## دکتې وجې یا عایداتو نظام: (the Revenue System)

دکتې وتې نظام په بیلا بیلو ځایونو کښې په بیلا بیل دول دے. د ټولنې ټوله ځمکه په برخو مشتمله ده او و جدی،

حق په حساب مالکان لري . د ځمکې د ملکيت په حواله په ځمکه هيڅ ټيکس نشته . البته د قانون محمدی له رويه د پيداوار لسمه حصه د عشر په توګه ورکوي .

عشر په دې توله علاقه کښې رواج نه لري ، د برې قبيلې لکه اماخېل ، د سوات د سيند د ښي غاړې د کونړ او بر سوات اکثرې قبيلې او د سمرانيزی خلک هيڅ چاته هم عشر نه ورکوي . بيا هم که چرې مقامي خان دومره زورور وی ، چې د عشر اخستلو توان لري ، نو ځينې کسان عشر ورکوي ، د سوات د سيند د ښی غاړې د دير او سوات قبيلې ياد دير خان ته او ياد هغه مقرر کړو مقامي خانانو ته عشر ورکوي .

د سوات د سيند د ښی غاړې سواتو قبيلو د دې د پاره چې د محاصل ( Revenue Collector ) د موجوديت نه ځان خلاص کړی ، د دير د نواب سره معاهده کړې ده ، او د هغې مطابق دوی د خپلو خانانو په لاس نواب ته په کال کښې يو ځل د عشر په ځای تاکلې پيسې ورکوي .

په باجوړ کښې عشر يا د ناوګی خان اخلی او يا هغو وړو خانانو ته چې هغه د دغه سيمو عائدات حواله کړی وی . دا وړه خانان لکه د خارخان ، د جارخان ، د پشت خان او داسې نور د قبيلو د هغه برخو نه عشر راټولوی ، چې په يو يا بل وخت کښې د هغوی د اختيار لاندې پاتې شوې دی .

هغه ځمکه چې د فقيرو طبقو سره ده ، يعنې د اجاره دارو

يا تنش پانړ سره د دې د پيداوار يوه تاکلې شوې برخه د جنس په شکل کښې د ځمکې مالک ته ورکوي. د مالک د برخې تعين په بيلا بيلو سيمو کښې د يو بل سره توپير لري. د کلي کسب گر لکه اهنگر، ملاتړ او دامې نور چې کومې ځمکې خوري، هغوی ته د هغوئ د خدماتو د صلې په ډول اجاره معاف وي.

## تجارت

د دير او سوات بنيادي پيداوار غوړي، وريجې، د الونه خرمنې، غنم، اوربشې، غوزان، گډې، بيزې، ورېه او مصالحې دي، د باجرې پيداوار هم د غه شيان دي. البته وريجې پکښې د دير او سوات نه کمې پيدا کيږي. د اوتما نخيلو په علاقه کښې نسبتاً په کمه اندازه کښې غوړي، خرمنې، څاروي او د لرگو سکاره پيدا کيږي.

په دې علاقه کښې چې څومره خوراکي مواد پيدا کيږي زياتره يې هم په دې علاقه کښې په مصرف رسيږي، ولې بيا هم د مقامي ضرورت نه کاني مقدار اضافي پاتې کيږي، تجارت هم د هند نه دراوړلو او هم هند ته د وړلو په شکل کښې کال په کال پراختيا مومي. او لکه څنگه چې د لاندې اعداد و شمار نه څرگنديږي، تر دې وخته په دې لړ کښې پوره زيات پرمختگ شوے دے. په تيرو کلونو کښې د هند، بدخشان او مرکزي

ایشیا ترمنځ د تجارت د مال یوه لویه برخه په دې علاقه تیریدله ولې په بدخشان او واخان کښې د کابل د امیرانو د لګول شوې قدغن له کبله اوس دا تجارت په عمومي توګه وجود نه لري .

هغه لوی لوی توکي چې د دیر سوات او باجوړ نه هند ته ځي ، څه په دې ډول دي . غوړي چې تیر کال (۱۹۰۰-۱۸۹۹) ئې ارزښت (۱۷ ½) لکهه وُ ، وریجې (۱۶) لکهه ، دالونه (۳) لکهه ، خوږې (۳ ½) لکهه ، غنم ، اوربشي ، غوزان ، ګډې بیزې ، وړې او مصالې تیر کال د ټول لیږل شوي مال ارزښت (۴۰۵ ،۹۸ ،۷۴) روپۍ وُ . چې په دې کښې لرګي نه دي شامل . د سوات او پنجکوړې د سیندونو په ذریعه هر کال د لرګو یو لوی مقدار هند ته ځي .

کوم شیان چې د هند نه دې علاقې ته راځي ، هغه په لاندې ډول دي ، د ملوچو سامان (چې ارزښت ئې تیر کال د (۴۶) لکهو نه زیات وُ .) ، تار او خام مالوچ (۷ لکهه) ، مالګه لس لکهه ، رنګونه ، چیني او تمباکو ، چاې ، او سپنه ، د خاورو تیل ، مصالې اسونه او نچس . تیر کال چې کوم مال راغلے وُ . د هغې ارزښت خواوشاه (۴۲۳ ،۳۵ ،۷۵) روپۍ وُ .

تیر کال (۱۹۰۰-۱۸۹۹) د راغلي او تللي ټول تجارتي مال ارزښت (۸۲۸ ،۳۳ ،۲۳ ،۱۰) روپۍ جوړیږي . په کال سنه ۱۸۹۳ سنه ۱۸۹۳ کښې د ټول تجارتي مال ارزښت (۶۵۹ ،۸۹ ،۳۵) روپۍ وُ . د دې موازنې نه دا پته لګي ، چې په دې لږ کښې څومره زیات پرمختګ شوے دے . بیشکه چې د دې زیاتوالي یوه برخه

دحقیقی نه زیاته ظاهري ده، ځکه چې په تېرو وختونو کښې به په اندراج کښې دومره زیات احتیاط نۀ کېدو، لکه څومره چې اوس کېږي، خو بیا هم د تېرو څو کلونو اعداد و شمار د ښکېنې پراختیا د څرګندولو د پاره پوره دے، د دې وجه نه واضحه دا ده چې زمونږ د انتظام لاندې د تجارتي لارو د ساتنې په لړ کښې منه والے راغلے دے. بلکې د چوټکي ختمول هم پکښې لوئ لاس لري. دا چوټکې به په دیر او سوات کښې هر هغه چا اخستلو چې زور به ئې لرلو. په ارزانو وختونو کښې د دې تجارت په دوامدار ډول د لا پرمختګ قوي اُمید شته. په دې وختونو کښې د نوښار نه تر درګۍ پورې د ریل د پټړۍ د خورولو په برکت به دا تجارت په تېزۍ سره مخ په وړاندې لاړ شي.

| د ورونکو راوړونکو څیزونو د تول ارزښت | د هغه څیزونو ارزښت چې دیر، سوات او باجوړ ته د پنجاب نه راځي. | د هغه څیزونو ارزښت چې دیر، سوات او باجوړ نه پنجاب ته ځي | کال |
|---|---|---|---|
| روپه | روپه | روپه | |
| ۳۵,۸۹,۶۵۹ | ۲۱,۱۹,۶۹۷ | ۱۴,۶۹,۹۶۲ | ۱۸۹۳-۹۴ سنه ء |
| ۴۶,۹۰,۵۷۰ | ۲۷,۷۲,۲۱۰ | ۱۹,۱۸,۳۶۰ | ۱۸۹۴-۹۵ سنه ء |
| ۳۵,۲۱,۱۲ | ۲۲,۱۲,۰۰۷ | ۱۳,۲۹,۱۰۵ | ۱۸۹۵-۹۶ سنه ء |
| ۸۴,۴۳,۳۴۷ | ۴۶,۱۶,۵۷۵ | ۳۸,۲۸,۷۷۲ | ۱۸۹۶-۹۷ سنه ء |
| ۵۷,۱۱,۳۱۸ | ۳۲,۳۲,۳۸۳ | ۲۴,۷۸,۹۳۵ | ۱۸۹۷-۹۸ سنه ء |
| ۷۳,۶۴,۴۶۷ | ۴۲,۶۳,۷۵۰ | ۳۱,۰۰,۷۱۷ | ۱۸۹۸-۹۹ سنه ء |
| ۱,۱۲,۲۳,۸۲۸ | ۷۵,۳۵,۴۲۳ | ۶۷,۹۸,۴۵۵ | ۱۸۹۹-۱۹۰۰ سنه ء |

د تجارت مال عموماً خټک او پراچګان وړي راوړي ، خټک دکوهاټ دملګی د درنګونو نه مالګه راوړي او د مقامي پیداوار په ځېزونو کښې ئې بدلوي. او دلځېزونه بېرته هند ته وړي ، هغه څلروي چې په دې لړ کښې استعمالیږي ، غوایان او خره ، او کله کله اوښان وي . پراچه تکے په عام ډول د بنجارې یا وروکي تجارد پاره استعمالیږي . او دا نوم د هغه پیشه ور وړونکو (Carrier) طبقي ته ورکړے شوے دے ، ځکه چې په بنیادي ډول د هزارې نه راغلي دي او دلته په دې علاقه کښې میشته شوي دي . دوئ اکثر قچر استعمالوي چې په زیات شمېر کښې ئې ساتي . او دې پکښې د اعلیٰ قسم هم وي .

لکه څنګه چې وړاندې ذکر وشو په دې تجارتي کسته وته کښې د هغه لرګي ارزښت نه دے شامل ، کوم چې د دې علاقې نه وړځي . په دیر او سوات کښې د لرګو تجارت ډېر پراخه دے . په دیر او سوات کوهستان کښې د لرګو لوئې لوئې ځنګلې دي . دا لرګي د سوات او پنجکوړې د سیندونو په ذریعه د ګرمۍ د موسم د سیلابونو په وخت کښې اباسین او نوښار ته په اوبو کښې لاهو کیږي .

په پخوانو وختونو کښې دا تجارت د نوښار سره خواته د زیارت کاکا صاحب د کاکاخېلو په لاس کښې وو . د خپلې مذهبي رتبې په برکت دوئ په دې علاقه کښې په ازاد مټ ګرځېدلے شول ، او په آسانه ئې د دې غریبو وحشي خلکو سره ګټوره تجارتي راکړه

ورکړه کوله شوه . د بله مرغه دوئ په دي دومره لويه گټه هم قانع نه وو، او غوښتل ئې چې نوره اضافه پکښې هم وکړي، او لرگي ښيځي به پيسو حاصل کړي . د دې مقصد د پاره هغوی د سيلمي د سيسو او اثر نه د کار اخستلو کوښښ کولو. د دې علاقې با اختياره کسان به ئې دې ته راضي کول چې يا خو لرگي د والده په ټوکه ورکړي او يا په تش په نوم قيمت لکه په يو روپۍ يوه وهلي وينه تري واخلي، دا وني به د غره په پوره توته برخو کښې په اوسپلو نکو کسانو بانديې د زور د مخې وهلې شوې. د ډيرې ونې به د غر نه لاندې خوړو توته را رغړول کېدلې. او بالاخره لوبو ته راوسولې شوې. چې پېښور ضلعې ته به را ورسېدلې، نو د ډيرې گرانې به خرڅېدلې حتی چې ځينې به پکښې په (۵۰) يا (۶۰) روپيه وينه تلله، لو په د دې اندازه د دې تجارت گټه ډيره زياته وه .

د کاکاخيلو تجارتي طريقو خبره دې نه ورسولې چې د خلکو سره د هغوئ د لرگي په راکړه ورکړه باندې بنديز ولگولې شو. او س هغوئ په سوات کښې پېڅې کاروبار نه شي کولی او په دير کښې د لرگيو اخستل ئې د سرکاري اجازې (اجازت) سره مشروط دی.

## ځناور او ونې بوټي

د سوات او دير پوړتنۍ سيمې د ونو د نظره ډيرې

غنی دی، او د دیار دېرې قیمتي ځنګلي لرګي، د باجوړ او تانګلو د سیمې د غرونو پر تیټو مخ خوړې یا دړې (SLOPES) هم ونې لرګي خوږه لږه اندازه۔ د داوورې د کرښې نه سبکته سپے لومړے د خزانو او شوو سره مخامخ کېږی په (۱۰,۰۰۰٪) فټه او سبکته خوانه دیار، نښتر، د زنغوزې ونې Rhododendron، شاه بلوط او (Hazel) موجود دی د (۶,۰۰۰) فټو نه لاندې زقم (چیړه، ځنګلي زیتون، چنار، توت، املوک، لوکاټ، غوز او نورې ځنګلي میوه دارې (بارې) ونې په نظر راځي په معتدل او چترالي پنبې (ریوند چینی) ستابرې او کرورې هم په زیاته اندازه موندلے شي. په کوز سوات او د پنجکوړې په سیمو د غرونو مخ لخوړې رنګی ځنګلي لرګي او په نهرې سیمو کښې فقط یو څو چنار ونه، توبان او د ولو ونې په نظر راځي.

مېلابېل قسم ځنګلي ګلابونه، بنفشه (چونیا) او نور د پر ځنګلي ګلان په بره سیمو کښې موندلے شي. او په کوزو سیمو کښې د عنبر ګل د غاټول مختلف قسمونه او ګل نرګس په زیاته اندازه موجود دی.

د دیر او چترال د پولې د غرونو په سرونو د پیر پنجال د قسم یو څو مارخور موندلے شي (Ibex) (د غرمونک) او د داورې پر انګان امکان شته چې د سوات د سیند د سرچینو په غرونو کښې موجود وی. ولې تردې وخته لا په ریکارډ نه دی راغلی.

هغه لوئ ځناور چي په دې تولهٔ علاقه کښې مونده شي د تور ښور، پړانګ، ځنځير، چرخ (لګړبګړ) شرمښ او ګيدړ نه عبارت دی. لومبړې، مشکوښان، ګشکي او سوی هم په زيات شمېر کښې موجودې دی. د مشک هوسی په دير کوهستان کښې پيدا کېږی. شادوګان په دير کښې عموميت لری او د کوز سوات نه چاپېره غرونو کښې هم د دوی رمې ګرځي. د سوات د سيند په جنوبي علاقو کښې (Goral) او د کابلی قسم مارخور پيدا کېږی، لوېښ د شتی چرګان د دير او سوات په غرونو کښې ډېر دی او د کوز سوات د تاڼي د جنوب په غرونو کښې هم مونده شي. خرې او تورې زرکې په معتدل او چترالی هر ځای ليده شي. چکور او سيسی هم ډېرې دی، په دير او سوات کښې بيلابيل قسم ورېب مرغه ډېرې زياتې دی. ډېر قسمه هيلۍ او چوروکه، تارو ګان او مرغان دې علاقې ته د سپرلی او خزان په موسم کښې هند ته د تلو راتلو په وخت راځي.

سيندونه د ماهيانو نه ډک دی. چي زياتره ئې د ولورې تراووټ (Trout) دی. په سپرلی کښې ماشير په زيات شمېر کښې د سوات او پنجکورې په سيندونو کښې موجود وی خو د خزان نه روستو ئې د برلن شمېر پاتې کېږی. ځکه چي دوی د پښور د علاقې تودو اوبو ته کوزېږی.

## (Antiquities) لرغوني شيزونه

سوات او دير د لرغوني اريانې د صوبې يوه حصه ده چې د دې صوبې حدود په لاندې ډول اټكل كيږي. شمال خوا ته يې د غرونو سلسله وه (چې چيني سيلاني هوانتسيانګ څوك چې په ۶۳۲ سنه ق.م كښې دلته راغلى و ورته څنكنګا ويئيل) چې اوس د دير او سوات د چترال او ګلګت نه بېلوي. مشرق خوا ته يې د پنجكوړې سيند و، جنوب خوا ته يې د هغه غرونو اوږد — بېلو ونكي لوړې وې كومې چې د پېښور علاقه د سوات نه بېلوي دې غرونو اريانا د خپلې كاونډۍ صوبې ګندهارا نه بېله كړې وه. مغرب خوا ته يې اباسين و. د دې صوبې دارالخلافه (MAGALI) وه. نو څكه موجوده منګلور د هغه ځاى كنډر ښي.

د ځواني چين د سيلانو د وينا مطابق اريانا يوه متمدنه او پرمختللې صوبه وه. چې نوم يې د (پارك) معنىٰ لري. او دا خپله د دې صوبې د زرخېزۍ تصديق كوي. لكه څنګه چې ميكار ده دا علاقه د كندراتو نه ډكه پرته ده. په خاص ډول د سوات ادينزۍ او تالاش. د دې نه اخوا مشرق طرفته د لرغوني باقياتو نښې منبانې په كمه اندازه موندلې شي. د لرغوني كنډراتو اكثريت په بر سوات كښې دى. چه چې د بله مرغه تر اوسه پورې دا ممكنه نه ده چې هغه په پوره ډول وپلټولې شي. په كوز سوات كښې هم د غرونو

د دې په هر ځای کښې د پخوانو ابادو، کوروټو، چونو، گمبدونو د باقیاتو نښې لږې .

داسې ښکاري چې د بده مت منونکو دا غلاقه په د ریمه پیړۍ قبل مسیح کښې نیولي وه او زمونږ د دوره تر او وومې پیړۍ پورې دلته پاتې شوي دي . حکاکی (کینډ نې) ، ترو لیکنې او تبان د هغوی د موجودیت د نښې په دول په دې علاقه په هر ځای کښې موجود دی . دا خبره د دلچسپۍ وړ ده ، چې زمونږ د ملاکنډ موجوده چوکۍ په هغه ځای جوړه ده چرته چې د بده مت د منونکو چوکۍ وه . د لرغون پیژندنې ( Archeo Logy ) په لړ کښې کرنیل ایچ . اے . ډینی چې کله دلته پولیټیکل ایجنټ وو . ډیره څیړنه کړې ده او د بده مت د تبانو وغیره قیمتی ذخیرې یې د کلکتې او لاهور میوزیمونو ته لیږلې دي .

په هند کښې لرغونې یادگارونو ته د تگ راتلو ازادي وه . نو ځکه یې مهارت کسانو د خزانو د لټون د پاره کیندنې کړې دي . او ډیر په بې رحمه طریقه یې لرغونې کنډرات او ځایونه تباه کړې دي . او بس د دې عمل د مخنیوي د پاره هڅه شوې ده . او یو څه کامیابي هم پکښې لاس ته راغلې ده . په دې علاقه کښې د لرغون پیژندنې په ساحه کښې د پلټنې او څیړنې پر لوې او د دلچسپۍ وړ میدان پرانستې شوی دی ، او هیله ده چې یوه ورځ به په سائنسي او جامع شکل په کارکوټې پورې

کړي ،

بې شماره کنډرات چې د غرونو په اوچتو برخو او- (NULLAH) کښې قرار لري . اوس تر ډېرې فاصلې پورې اوبه نه لري ، او همدارنګه د یوبل د پاسه د جوړو شوو پښتو د موجودیت نه داسې معلومېږي ، چې پخوا ډېرې چینې داسې وې چې اوس وجود نه لري . او باران هم په لرغونو وختونو کښې د اوس په نسبت زیات کېدلو.

# دوئمه برخه

## د هغه وخت تاریخ چې د پېښور اداري چارې لا د پېرنګي لاس ته نه وې تللې

### څلورمه پېړۍ قبل مسیح :-

دا ریا نُ (Arian) لیکنو نه داسې څرګندېږي چې په ۳۲۶ ق م کښې سکندر اعظم پخپله د خپل لښکر سره د کنړ، سوات، باجوړ او بونېر نه تېر شوے وُ، هغه په لاره کښې د پنجکوړې یا (Guroeus) او سوات یا (Suastes) د سیندونو نه اوړېدلے وُ، او د مساګا (Massaga) ښار[1] چې د اوسنی تالاش په علاقه کښې واقع وُ[2] ئې محاصره کړے وُ. هم په دې پېړۍ کښې خوا وُ شاه ښل[3] کاله وروسته چندراګوپتا په ۳۰۲ ق م کښې د کابل جاګیر چې دا علاقې پکښې هم شاملې وې د سکندر د جرنیل (Seleucus) نه په زور اخستے وُ.

## دریمه پیړۍ قبل مسیح :

د چندراګپتا نمسي اشوکا چې په

۲٦۳ ق.م کښې په تخت ناست وُ، د بدهـ مت د عقیدې هغه حکونه چاپ کړهٔ کوم چې د دې علاقې په بیلا بیلو برخو کښې په تېږو کینده شوي وو .

## د دویمې پیړۍ ق.م نه تر اوومې میلادي پیړۍ پورې:

د(۲۰۰ ق م) په خواؤ شاه کښې د پشامترا ـ Pusha metra.) د سیورۍ لاندې په دې منطقه کښې برهمنېزم ډېر تېز کامونه واخستل ولې په دې کښې کامیاب نهٔ شو چې د بدهـ مت منلے شوې عقیده شاه ته وغورځوي . منندر ـ (the Bactrian King) په ۱٦۵ ع کښې منځ ته راغے او د پښېور او خواؤ شاه په علاقو ئې حکومت وکړ . د هغهٔ نه وروسته بیا ساکوس یا (Sacoes) را مخکښې شو. د Scythian کورنۍ نه وروسته هندي شاهان د دې علاقې حکمرانان جوړ شو او تر اوومې پیړۍ پورې په اقتدار کښې پاتې شول په پنځمه پیړۍ کښې د چین سیلانې فاهین (Fahein) سوات ته راغلو او دې ته ئې (سواد) نوم کېښودلو. چې په سنسکرت کښې د اُدیانا ، په چینۍ کښې د "اوچانګ" او په انګرېزۍ کښې د "پارک" د معنی سره سمون خوري. هغهٔ د سوات سیند د (Su - Po - Fa) (-Su - tu.) په نوم یاد کړ، او وئې ویل چې دا خلک چې کومه

ژبه وائی هغه د مرکزی هند د خلکو د ژبې سره سر خوري

هغه دا ذکر هم وکړ چې بدهـ مت دلته سبنه په جوش کښې ده

د هغه نه وروسته دري نور چینی سیلانی دلته راغلی دی

هوی سنګ او سنګیون په (۵۱۸ ع) کښې او هوان څیانګ په

٦٤٤ عیسوی کښې . د مؤخرالذکر د مشاهدې مطابق بدهـ مت

مخ په زوال او برهمنیزم مخ په وده وو .

## داتې نه تر څوارلسمې پیړۍ پورې :-

په دې دور کښې د

کابل او په کابل پورې ترلو علاقو حکمرانان هندوان وو او تر

لسمې پیړۍ پورې په اقتدار کښې پاتې شوی وو . او بیا د تاملر

سبکتګین د لاسه د تحت نه وغورځولے شول . او بیا د هغه

ځوی محمود غزنوی د اباسین نه پورې ویستل . او د اباسین د

افغان غاړې د هوارو علاقو نه ئې د برهمن عقیدې ته خاتمه

وکړله ، ولې بونیر ، دیر او باجوړ د هندی قبیلو په لاس کښې

پاتې شول . او سوات ځانته خپل حکمران لرلو چې سلطان به ورته

ویلے شو .

د محمود نه وروسته چنګیزخان او تیمور لنګ چې په عام

دول ورته ( TAMER LANE ) ویلے شی راغلل ، چې

د پیښور هوارې علاقې او مسلمانان او سیمه ونکی ئې تباه او

برباد کړل . د ژوند او مال د تحفظ د نشتوالی له کبله د هوارو

علاقو ابادی د دیارلسمې او څوارلسمې پیړۍ پورې رنګه پاتې شوه

او بیا په تدریجي ډول دلازاك دلته اباد شول. بیا هغوئ هم مغلو د پښنبور دخوا او شاه د زرځېزئ ځمکې نه اوچت کړه په دې توګه وخت کښې د غوریو قبیلې بې خلله پاتې شوې.

پنځلسمه پېړۍ :-

د پنځلسمې پېړۍ په دویمه نیمائی کښې یوسفزي او اتمانخیل منظر ته راغلل. باید دلته د هغوئ د تېر تاریخ لنډه ذکر وشي، دوې قبیلې دوه څانګې چې یوه د خاخي او بله د غوریه په نوم یادېدله. د قندهار خوا ته اوسېدلې (دامې روایت راغلے دے، چې هغوئ د خراسان په غوره مورګه (Ghwara murga) ورځې سیمه کښې اوسېدل (په دې کښې شک نشته چې دا خراسان هغه علاقه ده، کومه چې اوس هم په دغه نوم یادېږي او د ژوب په شمال کښې واقع ده) د دوی تر مینځه په چراګاه باندې جګړه وشوه، خاخي ماتې وخوړله او په دې مجبوره شوه چې کابل خواته کوچ وکړي، په لار کښې د دوی سره اتمانخیل، د چا بچقله چې وښلے شي چې د ټانك (TANK)، او ګومل (Gomal) نه راغلي دي، او محمدزي ملګري شو. د پنځلسمې پېړۍ په دویمه نیمائی کښې د تیمور د نمسي اولغبیک تر دوره پورې دوی په کابل کښې نشته شول او شمېر ئې زیات شو، تر دې وخته پورې خاخي په درې څانګو کښې تقسیم شوې وه، یوسفزي، ګګیاني او ترکلاني. د خپلې زیاتېدونکې سوکالۍ په نشه کښې هغوی بالاخره د اولغبیګ

نه پهٔ د اکه د ګلی بغاوت وکړ ، اولغبیګ دا قبیله په زور
رام نهٔ کړے شوه ، نوځکه ئې تګی ته ګوتې واچولې او پهٔ یو
دعوت کښې ئې د ملک سلطان شاه او د هغهٔ د ورارهٔ ملک احمد
نه علاوه د دې قبیلې نور ټول د سر سرې مړهٔ کړل ، ملک احمد
پهٔ راتلونکی وخت کښې د یوسفزو پهٔ خاوره کښې د یو اهم
رول ولوبولو . او د هغهٔ قبر اوس هم د کوز سوات پهٔ الدنډ
نومې ځائې کښې موجود دے . د دې تباهۍ نه وروسته خاخی
قبیله د کابل نه وتښتېدله ، یوسفزی پهٔ ننګرهار کښې مېشته
شول ، ګګیانی پهٔ بسول او ترکلانی پهٔ لغمان کښې . مؤخرالذکر
یوه غیر مؤثره هڅه وکړله چې باجوړ د هغه قبیلې نه واخلی
کومه چې پهٔ دغه وخت کښې پهٔ دې خاوره کښې اوسېدله ، او
د عرب پهٔ نوم یادېده . بیا د خاخی پهٔ خپلو کښې اختلاف پیدا
شو چې پهٔ نتیجه کښې ئې جګړې وشوې ، یوسفزو د محمدزو پهٔ
مرسته د هسه راک ( HiSSarak ) پهٔ جنګ کښې ترکلانو ته
ماتې ورکړه ، پهٔ دې دواړو اتحادیانو کښې محمدزی زوراور وو ،
نو ځکه ئې غوره علاقه ځنپله واخستله او یوسفزی ئې بسول ته
وشړل ، چرته چې ګګیانی آباد وو . د غلته یوسفزو ونهٔ کړے شو
چې ځان ټینګ کړی ، نوځکه بېرته ننګرهار ته لاړل ، او د دلازاکو لخوا
ئې د ځهٔ تکلیف نه د غلته د پره شول .

څو کاله د آرام او پر امنه ژوند نه وروسته یوسفزو دا
ئې وقوفتیا وکړله چې د دلازاکو د ویستلو هڅه ئې وکړله ، ولې د

سیاه سنګ یا تورکاڼی په جنګ کښې ئې ماتې وخوړله ، او تاترې او شلمان ته لاړله ، او بیا د دغه ځائې نه جنوب خواته وکوچېدل ، او د شلمان او دلازاک د ولې د غرونو په لمن کښې مېشته شول او د دې ځائې په اوبو ئې قبضه وکړله ، د دې په نتیجه کښې جنګ وشو او دلازاک پکښې تاواني شو ، د دې نه وروسته یوسفزي د بېر په تېزۍ سره د ولې او هشنغر ته خوارۀ شول . د یوسفزو د دې کوچ تر وخته پورې بلجوړ د عرب قبیلې په لاس کښې وُ ، لکه څنګه چې وړاندې ذکر وشو عرب قبیلې حکمران نسل وُ ، او د باجوړ حاکم د هند واکمنو ته خراج ورکولو . د ګګیانو یو برخه په بلجوړ کښې اباده وه ، ولې ترکلاڼي تر دې وخته لغمان ته محدود وو ، په دې وخت کښې صفوي د اړې کړې او عمومي خودسرۍ له کبله د جلال اباد د مغل ګورنر د عتاب لاندې راغلل . او د دې حملې په نتیجه کښې د لغمان نه وشړلے شول . صفوي بیا په باجوړ کښې د ګګیانو سره پناه واخستله . او د دې علاقې عرب حاکم ته به ئې خراج ورکاوه .

عین په دې وخت کښې غوریه خېل د خاخي خېلو په تعقیب د جنوب مشرق نه راروان شوي وو . په ننګرهار او بسول کښې د بېره وو ، او په تدریجي ډول مخ په مغرب کوچېدل . د یوسفزو او دلازاکو تر منځ په پرله پسې ډول د ښار وو په غلا او نورو مسئلو شخړې روانې وې . چې د دې

پهٔ نتیجه کښې د یوسفزو، اتمانخېلو، محمدزو او غوریهٔ خېلو (مهمند، داؤدزی او خلیل) پهٔ منځ کښې د دلازاکو پهٔ ضد اتحاد جوړ شو. د دې اتحاد پهٔ برکت د دې قبیلو د ملک احمد پهٔ مشرۍ کښې پهٔ دلازاکو بریے بیا موند او هغوئ ئې پهٔ اباسین هزارې ته واړول. بیا اکبر د خپل حکومت پهٔ ړومبی برخه کښې او شاه سلیم شاه (جهانګیر) پهٔ سنه ۱۶۲۰ م کښې پهٔ زیات شمېر کښې هند ته بوتلل. د دې کښې نه پس محمد زو پهٔ هشتنغر قبضه وکړله او د دوئ غوریه خېل او یوسفزی (چې اتمانخېلو ورسره شریکه برخه لرله) هم پهٔ هغه ځایونو برقرار پاتې شول کوم چې د وړاندې نه د هغوئ پهٔ قبضه کښې وو.

## شیپاړلسمه پیړۍ :-

د هر وخت پکښې نهٔ وُتې چې

د یوسفزو غرضی نظر د سوات پهٔ زرخېزه علاقه پریوتلو. پهٔ دې وخت کښې سلطان وایس (چې ځینې وخت weis ، udais یا oweis لیکلے کېږی) د سوات حکمران وُ. د دهٔ اقتدار چې د سوات د علاقې نه علاوه پهٔ هزاره او د کشمیر تر پولې پورې قایم وُ. د شیخ ملی او ملک احمد د مشرۍ لاندې یوسفزی مخ پهٔ برۀ لاړل. او د شاه کوټ درې ته چرته چې سواتی د مخکښې نه راټول شوی وو. مخامخ ئې خېمې ښخې کړې. کله چې هغوی د دښمن د قوت او سمه ایز حالت پهٔ لړ کښې معلومات حاصل کړل، نو پوهه شول چې د مالاکنډ دره،

بغیر د څهٔ د فاع نه همد غسې پرته ده ، هغوئ خپلې ښځې
او ماشومان په کیمپ کښې پرېښودل ،چې اوروته بل وسائل او د
د ښمن توجه د سندرو او ډولونو په ذریعه د ځان خوا ته
راوګرځوی ، او د جنګ ځوانان ئې د شپې په تیاره کښې د مالاکنډ
په دره راتاؤ کړل . او د شاه خوا ته واقع کلیو په لوټولو ئې
ګوتې پورې کړې . سوا تیانو چې کله شاه طرف ته خپل کلی د اوږدو
په لمبو کښې ولیدل ، نو په بیلا بیلو لارو وتښتېدل ، او کوز
سوات ئې یوغې پرېښود ه ، تاریخ ځان ګردانوی : خوا او شا ـ
درې سوه کاله وروسته په ۱۸۹۵ ء کښې د چترال د ریلیف مهم
په موقعه د یوسفزو قبیلې غږه هم د غسې غلطی وکړه او ـ
جنرل سر رابرټ لو د دې جوګه شو چې په مالاکنډ په آرام
واوړي ـ د دې نه روستو د دولس کالو په موده کښې ـ
یوسفزی په تدریجی ډول په بونیر ، کوز سوات او د پنجکوړې
او اتمانخیلو په سیمو واکداره شول ،

په دې دور کښې د میرزا الغبیګ وراره شاهنشاه
بابر چې د وراندې نه په غونډ وهلے شوے وُ ، د یوسفزو او
ترکلانو سره په تماس کښې راغے . د بیلا بیلو حملو او په
دربار کښې د ملک شاه منصور (د ملک احمد د تره ځوی او د قبیلې
تش په نوم مشر ) د حاضرېده نه د انکار د بدل اخستلو په
نیت هغهٔ لومړے په باجوړ حمله وکړله او قبضه ئې کړه ، او د
بباړۍ سلطان میر حیدر علی ځوځه ئې تباه کړله او هغه ئې

مرکړ . په ترکلاڼو يې د داني په ټکل کښې خراج کېښود ۀ . په دې دوړ کښې ترکلاڼي مخ په پراختيا وو . او ترڅو دې وخته يې د جندول نه بغير نور ټول باجوړ نيولے وُ . بابر په باجوړ کښې خواجه کلان د خپل نائب په حيثيت پرېښود ، او ځپله د بابو ګړه سيمې ته داخل شو ، چرته چې هغۀ د Gibaris د ( ) له خوا د مخالفت يو بله هڅه شنډه کړله ، هغۀ بيا د جندول په سيمه يلغار وکړ او د سوات او پنجکوړې د سيندونو ديوځائې کېدو په مقام ئې پړاؤ واچولو . دلته هغۀ د ملك شاه منصور تش په نامه تسليمي حاصله کړه او د هغه سره يې د خپلې لور د واده تابيا په دې غرض وکړه ، چې دا قبيله په خپل قابو کښې وساتي . په عين وخت کښې هغۀ په دوئي باندې د داني خراج هم کېښودلو ، او دا لوظ ئې هم ترې واخستلو چې هغوئ به په بر سوات حمله نۀ کوي ، چرته چې سلطان وائيس ( W'ais ) د بابر د موجوديت په استفاده خپل ځان هغۀ ته تسليم کړے وُ . اګرچې د بابر هغه هڅې چې د سلطان د دارالخلافې منګلور د فتح کولو د پاره ئې کړې وې ، شنډې شوې وې .

بابر بيا د ميدان په سيمه تېرے وکړو او د هغې نه پس مخ په برۀ د سوات علاقې او مخ په ښکته د بونير په لاره ديوسفزو هوارو علاقوته ورسېد . د کوهاټ په لور د حملو او جنګونو ديو دور نه وروسته خاوُشاه په سنه ۱۵۲۰ء

کښې بابر بېرته کابل ته ولاړ او هلته ئې د يوسفزو د سر د ملکانو چې مشرئې د هغهٔ زوم ملک شاه منصور کوله، د يوې جرګې سره وليدل، دا جرګه د سوات نه د باجوړ او کنړ په لاره کابل ته راغلې وه، دوئ دا متنازعه مسئله راوړې وه چې د سوات په علاقه د يوسفزو او سواتو تر منځ پوله وټاکلے شي، د جرګې په غوښتنه بابر دا مسئله داسې هواره کړه چې تر ابوهې پورې علاقه به د يوسفزو وي، او د دې نه بره د سواتو حق دے.

بابر په سنه ۱۵۳۰ء کښې مړ شو او د هغهٔ ځوي همايون په تخت کښېناست، يو افغان شېرشاه چې اصل نوم ئې فريد وُ همايون سند ه ته وشړلو او اختيار ئې ترې په خپل لاس کښې واخست، ولې افغانانو د خپل حسد په بنياد دا نهٔ شو ليدلے چې يو افغان دې بادشاه وي، او لهٔ دې کبله همايون د بېر زر د دې جوګه شو چې بېرته راشي، البته د همايون د عدم موجودګۍ نه يوسفزو دا فائده واخستله چې د خراج ورکول ئې هم بند کړل، او هغه لوظ ئې هم مات کړه، کوم چې ئې د بابر سره کړے وُ، په بر سوات ئې قبضه وکړله، او سلطان وائيس (w'ais) ئې په اباسين پورې ويستلو، د باجوړ د ترکلانو او مهمندو په مرسته کامران د څهٔ وخت د پاره د همايون مخالفت کولو، ولې اخر کار هغه د کامران د زوړ په ماتولو کښې بريالے شو، او ترکلانو له ئې د خپل عمل يو څهٔ

تاکلې سزا ورکړله .

د همایون د دور په آخر کښې یوسفزو ملك احمد او شیخ ملی په مشرۍ کښې د دې علاقو زیاته برخه قبضه کړله، کومې چې اوس د هغوی په لاس کښې دی، هغوی ډیر د امن او سوکالۍ ژوند تیرولو، او د نوې قبضه کړې ځمکې د کر کروندې د پاره ئې ډیره زیاته خواری کوله، هم د دې وخت نه د شیخ ملی د ځمکې د تاکلې وخت او ویش نظام رواج وموند . دا ویش په یوسفزو او غوریه خیلو کښې تر اوسه پورې په عملی ډول موجود دے، په دوی کښې یوسفزی فاتح وو، چې ترکانو، چاچې د دوه سوه اسونو د یوې دستې تابیا کړې وه . او اتمانخیلو ورسره مرسته کړې وه. په دې موقعه خان کاچو د یوسفزو مشری کوله، دا واقعه خوا او شا په سنه ۱۵۵۰ء کښې شوې وه .

په سنه ۱۵۵۵ء کښې د همایون ځوئ اکبر په تخت کښیناست په سنه ۱۵۸۶ء کښې یوسفزوله د سزا ورکولو د پاره یو مهم ولیږلے شو چې مشری ئې زین خان کوکا چې د اکبر رو زل شوے ورور وُ، او راجا بیربل په ګډه کوله . دې فوځ په هوارو علاقو کښې خپل هدف حاصل کړ، ولې په غریزه علاقه کښې ناکامیابه شو، او اټک ته په ستنیدو مجبور کړے شو . بیا دوئم مهم هم د دې مشرانو په مشرۍ کښې ولیږلے شو، بیربل دا هڅه وکړله چې د مورې د درې په لار سوات ته داخل شی ولې په شاه وتنبولے شو . د بیربل د فوځونو د ماتې سره یوسفزی

نورهم زرور شو. د زین خان په کیمپ باندې ئې هم د شپې حمله وکړله، او هغه ئې هم اوچت کړ. پو دریم مهم د تودارمل او
اومان سنگهه په مشریه کښې را ولیږلے شو، دوی د تیر وے مهمونو د مشرانو د بدمرغه تجربې نه استفاده وکړه، او په
هواره کښې ئې د قلاګانو جوړولو او په غوئ کښې د پوره قواؤ د ساتلو پالیسی اختیار کړه. او په دې ډول ئې د قبیلو له خوا
د هوارو ځمکو د کرلو مخنیوے وکړ، یوسفزی چې د څه وخت نه روسته تنګ شو، نو د دې خپسې د پاڅولو لپاره ئې په
سنه ۱۵۸۷ء کښې تش په نامه خپله تسلیمي پیش کړه او اکبر د هغې منظورول د خان د پاره غوره وګڼل.

هم په دې وخت کښې د باجوړ عرب قبیلې د هند د خپلواکۍ سره خپله وفاداري ختمه کړې وه، او د موزه خان په مشریه کښې ترکلانو د باجوړ نه ایستلي وه، ترکلانو- گلیانی هم وتړکول، او د باجوړ نه ئې وځغلول. او د یوسفزو په رحم اوکرم ئې کړه، جندول تر دې وخته پورې د دلازاکو سره و، څوک چې د باجوړ په نورو سیمو کښې هم په کافی شمیر کښې موجود وو.

د شپاړسمې پیړۍ په آخر کښې د لغمان باجوړ او سوات قبیلو د بریډ وینو (پولو) د ټاکلو په مسئله جنګونه وکړل، یوسفزو ته دا موقع په لاس ورغله چې د لغمان د ترکلانو سره یې تل کړي او د دې په برکت ئې د سواتو پاتې باقیات هم وځغلول او تول بر

سوات ته ئې ونیولو. هم داړنګه د لغمان ترکلاڼو د دلازاکو وشړل، او په زوړ باجوړ ئې قبضه وکړله. د دلازاکو مشري هیبت خان کوله او آخري جنګ ئې د خار خواته په لسبوره نالې (Lasbora Nulla) کښې وشو، د یوسفزو مشر ملک علی اصغر و-.

دې زمانې دور د یاره قبیلو د آرام ساه واخستله، او بزګرۍ (کښت اوسابانه) ئې وکړه. ولې بیا هم نه خو دا دوره د دوېمره لویې خوشحالۍ وه چې د اوږد وخت د پاره پاتې شوې وې، او نه د اختلاف وجه د پېره لرې وه. یو نوې او غیر عقیده پرست مذهبي مشر منظرته راغې، د هغه نوم بایزید و، چې د خپلو له خوا په پیر روښان او د بد خواهو له خوا په پیر تاریکي مشهور و. د هغه نظریات ډېر نرم وو. او د ټولني د بې سره برخې سره ئې سمون خوړلو. د هغه پیروکار د یوې په قبیلو کښې ډېر په تېزۍ سره زیات شو، اخون درویزه بابا د هغه کلک مخالف و. اخون درویزه یو لوی یوسفزی تاریخدان و، په ننګرهار کښې پېدا شوې و، ښه تعلیم یافته و، او د قبیلې په کوچونو کښې د هغوئ سره ملګرې و، هغه د پیر خلاف د عقیده پرستۍ اتل و. د هرې دلې خپل پیروکار وو، د بحثونو نه خبره تورې لګونې او جوابي غندنې ته او بالاخره مظاهرو ته ورسېده، په ټوله علاقه کښې اړې ګړې جوړ شو او د ټپرۍ جرمونه ډېر زیات شول، د دې حالاتو په وجه په کابل کښې د اکبر وایسراې محسن خان دا ضروري وګڼله چې مداخلت

وکړي، هغهٔ په بايزيد اود هغهٔ په پيروکارو حمله وکړله، د هغهٔ (بايزيد) پې لهٔ يوهٔ نور نهول ځامن يې ووژل، او بيا يې دې قبيلو ته د لاقانونيت او خراج نهٔ ورکوو په لړکښې د سزا ورکولو دپاره قدمونه پورته کړل، باجوړ، سوات او بونېر ته د سزا ورکولو د پاره د کابل گورنر (والی) محمد قاسم خان د زين‌خان کوکلتاش پهٔ مشرۍ کښې يو مهم ولېږهٔ، دا قوماندان د قمبر او د هندو راج لهٔ اړخه باجوړ ته ننوتلو، هلته يې يوه چوڼۍ جوړه کړله او پهٔ هغې کښې يې پوره ښهر فوځ پرېښودهٔ، او د تالاش په لاره سوات ته لاړو، يوسفزو ته يې ماتې ورکړله، او پهٔ دمغر (Dumghar) کښې يې يوه بله چوڼۍ جوړه کړله. او پوره فوځ يې پکښې واچولو، هغه د دې نه روسته اطرافو (کليو، بانډو) ته لاړو، هغه ځوځايه بد بد وننبتو، ولې د کابل نه ورله پسې کمک پهٔ برکت بالاخره د دې علاقې پهٔ چوړ کولو کښې کامياب شو، او د باجوړ ترکلاڼي او يوسفزي يې پهٔ پوره توگه رام کړل، د زين‌خان عمليات (Operation) د سنه ۱۵۹۱ء نه تر سنه ۱۵۹۵ء پورې پنځه کاله واخستهٔ، په دې وخت کښې هغهٔ د نورو ځايونو نه علاوه په مالاکنډ او چکدره کښې چوڼۍ جوړې کړې، د دې سخت او ځورونکي سبق نه روسته دا قبيلې د يرغلونو او جنگونو نه زړهٔ موړې شوي وې، او دې ته خوشحاله وې چې د يو څهٔ وخت د پاره خپلو پټو او کنډکونو ته توجه وکړي.

## اوه لسمه پېړۍ :-

اکبر په ۱۶۰۵ء کښې مړ شو د هغه ځوئ سلیم شاه په تخت کښیناست او د محمد جهانګیر نوم ئې په ځان پورې کړ د ده د اقتدار په وخت کښې په یوسفزو کښې په داخلي ډول ځنې اهم بدلونونه منځ ته راغلل ، تر دې وخته پورې د یوسفزو په نوم کښې هغه ټول وګړې شامل وو ،کوم چې د یوسف او د هغه د ورارهٔ او میرنۍ ځوئ مندن زوزات وُ . او تر اوسه پورې د دې دواړو فرقو د غرا وسمې په څمکو کښې برخه وه ، ولې اوس د دوی په منځ کښې زړه بداوے او جګړې راپیدا شوې ،چې د دې په نتیجه کښې یوسفزو مندنو د باجوړ ،دیر، سوات او بونیرنه وویستل ، او په جواب کښې مندنو یوسفزو د هوارو علاقو نه وشړلول ، البته د هغوئ د پېړۍ نسب پوهه کالو نو په خپله خوښه په لوند خوړ کښې پرېښودهٔ ، چرته چې اوس هم د هغوی زوزات اوسېږی ، که چرې ذکر شی نو بې ځایه به نه وی چې لکه څنګه چې پښتانهٔ پخپله هم وائی چې د مردان تحصیل اوسېدونکو ته یوسفزي ویُیل درست نه دی او په صحیحو معنو کښې د دیر ، سوات ، بونیر او د چملې (Chamla) خلک اصل یوسفزي دی .

د جهانګیر د دور چې د ۱۶۲۷ء پورې وُ ، په باب برخه او د هغه د وارث چې د ۱۶۵۸ء پورې وُ . د حکومت په وخت کښې په دې تیلو کښې څه خاص د ذکر وړ واقعات نه دی شوی

کله چې اورنګ زیب عالمګیر بادشاه شو، نو تر یو څهٔ وخته پورې دې خاموشۍ دوام وکړ، ولې د وخت تیریدلو او دیوسفزو د مخ په زیاتیدو سوکالۍ د هغوئ نه د زین خان ورکړے سبق وروورو هیر کړو، او بالاخره د اورنګزیب د پېښور نماینده ته ئې د خراج ورکولو نه انکار وکړ. هغهٔ د دوئ د سرکوبۍ د پاره یو ورو کے خوندې فوځ راولیږلو، چې دوئ ورباندې حمله وکړله، او د علاقې نه ئې بهر کړ، د دې نه وروسته هغهٔ یو لوئ فوځ راواستولو، او په هوارو سیموکښې دننهٔ په سره سینه دېره شو، چې په دې وجه د دې قبیلې د وګړو سره دا تشویش پیدا شو، چې کښې داخلک په دې ځائې کښې په مستقل ډول د استوګنې په نیت راغلی دی نو ځکه سمدستی تسلیم شول، او په راتلونکی وخت کښې د ښهٔ روئې ضمانت ئې ورکړ، دا واقعات په ۱۶۷۰ء کښې شوي دی.

دا دور د پښتو د منلے شوي شاعر او خټک مشر محترم خوشحال خان خټک د لیکنو په حواله د توجه وړ دے، دیوسفزو په حقله د هغهٔ تذکره توصیفي نهٔ ده، هغه وائی، چې سوات به د ځمکې په مخ جنت وُ، خو کهٔ اوسیدونکی ئې دا ناخوښه خلک (یوسفزي) نهٔ وے. په اورنګ زیب پسې شاه عالم پادشاه شو، او بیا د دهٔ نه وروسته محمدشاه په تخت کښېناست د چا نه چې یوسفزو په داګه د ګلی بغاوت وکړ.

اتلسمه پیړی:-

د دې پیړۍ په لمړۍ برخه کښې نادرشاه د مغلو

په تخت قبضه وکړله ، او د هغه نه وړاندې بادشاه چې د دې ېې سره قبيلو سره کوم نرم سلوک کړے وُ ، د هغې اثرات ئې ډېر ژر محسوس کړل په ۱۷۳۸ء کښې چې هغه پېښور ته راغے ، نو دې يوسفزو درسمي وفادارۍ او د هغوئ د مشر ناصرخان په دربار کښې د حاضرۍ غوښتنه ئې وکړله . د هغه د دوارو غوښتنو نه د چورلټ انکار له کبله هغه موبيلائزېشن ( mobilization ) د مغل فوځ سره د هغوی د مجبورولو د پاره ولېږه . په هوارو علاقو کښې د قبيلو په مزاحمت باندې په اسانه قابو وموندلے شوه . ولې مغل جرنيل د دې کار ستونځې په مناسب ډول اندازه نه کړلے شوې ، او د امبېلې او شيرد رې په درو کښې ئې د هغوئ د تعقيب هڅه وکړله ، د دې نتيجه دا شوه ، چې هغه ئې په شاه راوتمبولو ، بالاخره په پوره ډول ئې اوچت کړې د دې نه وروسته نادرشاه دا کار په خپل لاس کښې واخيست او په خپله مشرۍ کښې ئې فوځونه په چينګلۍ وړ واچول ، او په دې علاقه کښې ئې خپلې پښې مضبوطې کړې ، هغه ترې هغه وخته ونه وتلو ، ترڅو چې ئې جرمانه ( جريمه ) نه وه لګولې ، او ضمانتونه ئې نه وو اخستي .

په ۱۷۴۷ء کښې نادرشاه ووژلے شو ، او احمدشاه ابدالي (دُراني مشر) بادشاهي ترلاسه کړله ، د لاهور د قبضه کولو په هڅه کښې د دوه ځله ناکامۍ نه روسته هغه په ۱۷۴۹ء کښې د يو بې زوره وړې حملې په نيت بېرته راغے ، او د دې قبيلو نه ئې کمک وغوښته د داسې مهم سړي چې د لوټ امکانات پکښې ډېر وو ، د هغوی

د پاره زره ورکښونو درلود، او یوسفزي ورسره په ګډه ښمر کښي ملګري شول.

احمد شاه په ۱۷۷۳ء کښي وفات شو او د هغه ځوی تیمور پادشا شو، د ده په دوره کښي قبیلو په باقاعده ډول خراج ورکاوه. دے په ۱۷۹۳ء کښي مړ شو، او اقتدار د شاه شجاع محمود او فتح خان او بالاخره د بارکزو کورنۍ ته ورسېده.

## نولسمه پېړۍ :-

تر دې وخته پورې سکهان اټک ته رارسېدلي وو، او د اباسین په دې غاړه علاقه مخ په راخوړېدو وه. په ۱۸۲۳ء کښي د فتح خان ورور اعظم خان په هغوي د حملې اراده وکړه، او د نورو قبیلو نه علاوه یوسفزو هم د هغه سره خپل تقدیر شریک کړو، سکهان بریالي شول او رنجیت سنګهـ پېښور ته داخل شو، د هغه سره سکهانو ته میسون (Masson) هم خپل خدمات وړاندې کړي وو، او هغه غالباً اولنے یورپي سړے وُ، چې د پولې د قبیلو سره ئې واسطه راغلې وه.

په ۱۸۲۰ء کښي د هندوستانی جنون پرستو (مجاهدین) د فرقې بانی میر سید احمد شاه بریلوی چې پیروکار ئې اوس هم په بونېر کښي شسته منظر ته راغے، هغه او د پېښور خلورو درانو سردارانو په شریکه د سکهانو د ویستلو هڅه وکړه ولې ناکام شو، او سید احمد د کوز سوات بټخېلې ته وتښتېده

او هلته د څه وخت د پاره مېشته شو، هغهٔ ځانته امیرالمؤمنین
ویل، ولې هغه نوم چې هغه وړاندې په مقامي ډول پېژند لے شي
سید بادشاه دے. د سوات نه هغه مخ په کښته زیدې او تخته بند ته لاړو. دلته
هغهٔ واورېدل چې د هند مبادی خان د هغهٔ مخالفت ته ملیله دے او د سکهانو
مرسته کوي. نو ځکه ئې په مبادی خان حمله وکړله. ولې په خپل مقصد کښې کامیاب
نهٔ شو. بیا وروسته هغهٔ دا بهانه وکړله چې زهٔ د مبادی خان سره داشخړه په
امن ناکه طریقه هوارول غواړم. هغهٔ عبدالغفور (چې وروستنه بیا
د سوات اخوند جوړ شو) سلاکړ چې خان د هغهٔ سره د ملاقات
د پاره راولي، او کله چې هغه راغلے نو سید سمد لاسه ووژلو.
هم په دې وجه د څهٔ وخت د پاره اخون د دې علاقې نه وتښتېدهٔ
د سید اثر د ولې په قبیلو کښې مخ په وړاندې لاړو، ولې
زیات دوام ئې ونهٔ کړ، په یو څو کاله کښې د هغهٔ د سختو قوانینو
له کبله په خلکو کښې د هغهٔ خلاف کرکه راپیدا شوه او دیوې
کوټلې منصوبې لاندې د هغهٔ ډلهٔ ایز په یو وخت ووژلے شو.
سیّد بونېر ته وتښتېدهٔ او د هغه ځائې نه بیا هزارې ته
وشړلے شو. او هلته په بالاکوټ کښې په سنه ۱۸۳۱ء کښې ووژلے شو.

په دې دوران کښې د سوات د اخوند اثر مخ په زیاتېدو
روان وُ. په سنه ۱۸۳۵ء کښې هغهٔ د سکهانو خلاف د امیر دوست محمد
خان سره لاس یو کړ، ولې د ماتې خوړلو نه وروسته بلجوړ او سوات
ته لاړو، او بالاخره د بر سوات په سیدو کښې په مستقل ډول
دېره شو، دلته د هغهٔ شهرت او اثر ډېر زیات شو، په ټول

وخت د پاره د مزاحمت د توان نهٔ لرلو بچقله حاصله کړې وه .

د اخون د مرګ سره دوه زوروړې ډلې منځ ته راغلې یوخواته د دیرخان رحمت الله خان (د غزنخان خوی) او د رانیزو مشر شېردل خان وو، او بلې خواته د اخون مشر خوی منان چې په میان ګل مشهور ؤ، او د رانیزو د مخالفې ډلې مشر سعادت خان وو

دلته باید د باجوړ د حالاتو ذکر وشي، ځکه چې د فیض طلب خان (څوک چې په امبیلا کښې زموږ خلاف جنګېدلے وو) ځوئے عمراخان هم په دې دور کښې منظر ته راغے، دے د امانخان دویم خوی ؤ، او محمد زمانخان د ده مشر ورور ؤ. څوک چې د پلار د مرګ نه پس د باړوې خان جوړ شو، عمراخان د خپل ورور محمد شاه خان سره یوځائ د مشر ورور د لاسه د جندول نه شړونکې شو، او د متکی اتمانخېلو سره ئې پناه واخستله، هغه دا وخت درویشت کلن ؤ، د محمد شاه خان په امداد هغه د خپل مشر ورور محمد زمانخان چې د باړوې مشر ؤ په وژلو کښې کامیاب شو، او بیا د ټول جندول واکمن جوړ شو، په دې لړ کښې د جمبتي، مشوانو او د مسکیني د علاقې شېخ خېلو ده مرسته وکړله، د دې کومک په بدل کښې ده د شېخ خېلو سره دا وعده کړې وه چې هغوئ ته به د ګمبېر ځمکې (کومې چې د ده پلار د هغوئ نه قبضه کړې وې) واپس ورکوي، د کښې نه روسته ده محمد غسې چل وکړ ولې پنځه کاله پس د خپل لوظ نه وتښتېده، او شېخ خېل ئې

د کمبیر نه بهر کړل . د ده ورور میرحسن چې په جند و[redacted] کښې د مونږه خان و ، داسې محسوس کړله ، چې هغه د بهر[redacted] کمک نه بغیر د عمراخان د مخالفت جوګه نه دے ، نو ځکه ئې د دیر دخان رحمت الله خان نه امداد وغوښت ، او دوئې دواړو په مشریکه د ماپاړو خواته په بیړه ولې کښې د عمراخان په لښکر ح[redacted]له وکړه په دې موقعه د نلوګی خان هسې په نوم د عمراخان سره و ، ولې پټ په پټه ئې د مخالفې ډلې سره سازش جوړ کړے و . چه دې جګړه کښې عمراخان ماتې وخوړله . او چینګی ته لاړو .

سنه ۱۸۷۸ء

په اباړو کښې د اتمانخېلو د ناوړه روئې (تیري) په جوا[redacted] کښې د کپتان د بلیوبټے (Battye) په مشره کښې چې کیوګنا[redacted] ورسره پولیټیکل افسر و ، فوځ ولیږلے شو او د سیرې کلے ئې [redacted]و سوزه سیرې د میان رُخ کلے و ، چاپې دې تیري ته خلک پاروله [redacted]و ، په دې نښته کښې میاد ووژلے شو ، د اتمانخېلو جرګه راوغ[redacted]ښتلے شوه او امر (حکم) ورته وشو ، چې پنځه زره روپې جرمانه [redacted]جرم) ادا کړي . (۱،٦۰۰) خونبها (۲،۲۰۰) د زخمیانو پیټی (۱۰۰) جرم[redacted] نه او دوه سوه روپې د لوټ شوي مال قیمت ) د جرګې ځنې غ[redacted]ی حاضر شول . خونابنده کړی ئې پوره نه وه نو ځکه جرګه برخاست [redacted]وه او قبیلې ته د ا اخطار ورکړے شو ، چې که چرې صفوئې لوړ[redacted]م د تالمنتول نه کار واخستلو ، نو په نتیجه کښې به ئې د لا سنګینې [redacted]زا سره مخامخ شي . په دې دوران کښې د سمرانبرې د خلکو ر[redacted]به

پهٔ خرابېدو راغله ، دا خون د مرګ نه وړاندې څو کاله زموږ سره د دې خلکو سلوک دا سې ښهٔ و ، لکه څنګه چې موږ غوښتلو پهٔ خاص ډول د سخاکوټ کلی د پیرنګی پهٔ علاقه کښې د شوکو او مفرورو ته پهٔ خپله سیمه کښې د پناه ورکولو پهٔ شکل کښې تېرې شروع کړلې د میجر او. کیمپبل پهٔ مشوره کښې چې کیوکناری او وار برټن ورسره د پولیټیکل افسرانو پهٔ حیث ملګری وو ، دا (Guides) یو وړوکے غونډې فوځ پهٔ فوری ډول ولېږلے شو ، هغوی د سخاکوټ کلے محاصره کړو ، بیائې ورباندې (۵۰۰) روپۍ جرمانه کېښودله ، او د ښهٔ سلوک د ضمانت پهٔ ډول ئې تری ۳۲ ، یرغملیان واخستل ، د سخاکوټ فوری سزا پهٔ اتمانخېلو د برګنډو اثر وکړو ، هغه کلیو لکه پړانګ غار ، نورے د ند او سپری د چا نمائنده کان چې د وړاندې نه حاضر شوی وو ، (۵۰۰۰) روپۍ جرمانه ادا کړله ، لو وئې ویل چې هغوی به د زیرکو او بخي (څوک چې ضد کوي) نه هم د هغوئ برخه پیسې وصول کړي ، د دې د پاره چې هغوی لارې ته راولی ، د مارچ پهٔ میاشت کښې د جبر دک قلمونه پوره کړے شو . د ترکی ، بوچې ، انلې میانه او ناصر کلی محاصره کړے شو ، چې د دې پهٔ نتیجه کښې د زیرکو او بخي ، مشران تسلیم شول ، او خپله برخه جرمانه ادا کولو ته ئې غاړه کېښودله .

ترڅو چې د باجوړ د واقعاتو تعلق دے ، نو پهٔ دې خاطر چې د خان د پاره وخت پیدا کړي ، عمرا خان دا تاثر ورکولو ، چې هغه د دیر د خان سره د دوستۍ خواهشمند دے ، او پهٔ دې لړ کښې

ئې خانته د خپلې خور د ورکړې (په نکاح) پېشکش هم کړے و.
خو کله چې رحمت الله خان جندول پرېښود ه، نو هغه (عمرا خان)
په هرڅهٔ منکر شو، د دې په جواب کښې رحمت الله خان په جندول
حمله وکړله، او د ستبر (sat bar) په مقام د دوئ په منځ کښې
جګړه وشوه، په دې جګړه کښې د رحمت الله خان سره د نلوګے
او اسمار خانان ملګرى وو، او د خارخان دلارم خان د عمرا خان
په طرف وو، عمرا خان بريالے شو او د دير او نلوګے خانان ئې د
جندول نه وويستل، او د دې نه وروسته ئې د اسمار په خان
لښکر وکړ او د مسکينې د سيمې په خُله کښې د ګنديرۍ په مقام ئې
هغهٔ ته ماتې ورکړه، بيا وروسته د دلارم خان سره هم د هغهٔ
(عمرا خان) تعلق خراب شو، او هغه ئې د جندول نه بهر کړ، د دې
نه لږه موده وروسته د دير خان څوک چې د ميدان ماندړ ته تللے
و عمرا خان لود هغهٔ ورور د مونډه مير حسن خان د هغوى سره
منځ د روغې جوړې په بهانه خپل ځاى ته راوغوښتل، عمرا خان په دې
چال کښې رانغے او بلنډۍ ته لاړو، خو دا ئې نصيب و چې د بندى
کېدلو نه وروسته په تښتېدلو کښې کامياب شو.
په سوات کښې د اخرت د ووُ ځمانو د دسمبر په مياشت کښې
د پيرنګى د حکومت خلاف د جهاد هڅه وکړله، ولې په دير او باجوړ
کښې کورنے سياست په داسې نازکه مرحله کښې و، چې مشرانو ئې دې
جهاد ته توجه ورنکړے شوه، او د الدړ نډ شېردل خان چې د ا
وخت د اقتدار نه بهر و. په دې وجه د دې جهاد مخالفت ـــ

وکړې چې د هغهٔ مخالف سعادت خان ئې مرسته کوله ، او د دې نتيجه دا شوه ، چې جهاد په مکمل ډول ناکاميابه نشو ، په عمومې توګه د شېردل اثر يو مهم عامل وُ ، او هغه هم دا سړے وُ ، چې کله څو کاله وړاندې په عارضي ډول د اقتدارنه لرې شو ، نو د سمرانيزيو خلک ئې د دې ته ولمسول چې د رانيزو د غلام محمد جغ دخپلو اوږو نه وغورځوي .

**۱۸۷۹ء :-**

د دې کال په اوږدو کښې عمراخان د هغه ناوړه سلوک کوم چې د دهٔ سره شوے وُ ، د بدل اخستلو د پاره د ګوسم لاندې د دير په علاقه حمله وکړه د رود او پنجکوړې د سيندونو د يوځاى کېدو د مقام خواته په ولړه کښې فهم جان خان او د دير د خان دوه ځامن د هغهٔ مخې ته ودريدل ، ولې هغه بريالے شو او د جندول او پنجکوړې په منځ کښې ټوله علاقه ئې ونيوله ، په ولړه کښې د عمراخان کتې هغه په سياسي ډګر کښې په لومړي ځل د يو زورور عامل په حيث رامخکښې کړي او د دې ثبوت دا دے چې مياں ګل پخپله بارويې ته هغهٔ له راغے او د دير د خان خلاف ئې ورسره اتحاد وکړ په دغه وخت کښې د دير خان د سوات يوه برخه نيولې وه ، په ژمي کښې مياں ګل د چکدرې په مقام په سيند پورې وتو ، او د ادين زئي د خاورې يوه برخه ئې ونيوله ، په جواب کښې ئې د دير خان لښکر راغونډ کړ د تلاش په لاره مخ په وړاندې لاړ و ، او بيا شوه کښې د مياں ګل

نه چاپېره شو، کله چې په میاګل زور زیات شو نو د کمک د پاره ئې په عمرا‌خان پسې خبر وکړ.

**سنه ۱۸۸۰ ع —**

کله چې د میاګل پیغام عمرا‌خان ته ورسید، عمرا‌خان د خپل لښکر سره د باړوې نه راروان شو، او د شپې ئې د دیر د خان لښکر آکه پیکه کړ، په جګړه کښې عمرا‌خان ژوبل شو، او د خپل تره د ځوئې عبدالغنی د مېړانې په برکت د مرګ نه بچ شو. د دیر لښکر ماتې وخوړله او د لړم درې په طرف وتښتېده عمرا‌خان بیا په تالاش قبضه وکړه، او سرکاری عایدات (Revenue) ئې ولګول.

د رانېزو مشر د الله ډنډ شېردل خان د پېرنګی په علاقه کښې چرته چې هغه د علاج (تداوی) د پاره تللې وُ، د اپریل په میاشت کښې مړ شو. د هغهٔ د مرګ نه وروسته د مقامی سیاست په حواله د دیر رحمت الله خان، د جندول عمرا‌خان او د سیدو میاں ګل اهم او زورور کسان پاتې شول.

د تالاش نه د عمرا‌خان توجه د میدان خواته راستنه شوه چرته چې مخورېز سړے د باندړه سردارخان وُ او د دیر د خان د اثر لاندې وُ. د سردارخان د ورور شهزاده خان په پته مرسته هغهٔ د میدان باندړې نه درې میله لرې کور (Gour) ونیولو او د دیر خان او سردارخان شریکه حمله ئې واپس کړله، ولې بیا هم د باندړه په تسلیمولو کښې کامیاب نهٔ شو، او بېرته باړوې

نه ولاړو، ځلته نه هغه بیا لښکر تیار کړ، او د جان بهتړ د لیکې
په مشاهۍ ئې ورواچو، د چرته نه چې د بړول او اسمار لارې کنټرول
کیدې، او د شپې په یوه حمله کښې ئې قبضه کړ، او د دیر د خان
سړي ئې وځغلول، د دې په ځواب کښې د دیر خان د بړول په
سیمه وسوراندې شو، او د عمراخان سړي ئې په مخه کړل، او بیرته
ئې بارړوي نه ورسول، د دې نه د څومیاشتو وروسته پورې
عمراخان په جندول کښې د دې سیمې د خلکو په قلارولو، خپلو
سړو له تربیت ورکولو او د وسلې په راغونډولو کښې بوخت پاتې
شو.

بدنامه ملا خلیل (مهمند او ړلړونکی) محځه وکړله چې د باجوړ
او دیر قبیلې ولمسوي، او د جلال اباد کرد چاپېر سره زموږ
د مخابرې (communication) لاین ګډوډ کړی، ولې
د دیر د خان ځوک چې په دې وخت کښې د عمراخان د حرکاتو په
څارنه کښې مصروف ؤ، د غیر فعال روئې په وجه د بر کامیاب
نه شو.

<u>سنه ۱۸۸۱ء :-</u>

دکوټ تیر شهزاده خان د عمراخان سره غوږ نزدې کړو،
او هغه له ئې دا اجازت ورکړ چې کوټه تیر ونیسی، کله چې د دیر
خان خبر شو، نو هغه د پنجکوړې په سپکته خپل لښکر د حملې په
نیت وراخلاص کړ، ولې د سوات نه میاں ګل د عمراخان د مد د
د پاره راغے، او د دوئ شریک لښکر د دیر په خان حمله وکړله، او د

شهزادګۍ په مقام ئې هغهٔ ته ماتې ورکړله، بیا عمراخان په دوړه کښې چوڼۍ جوړې کړې، چې دا بیا د پره ژر دیروجر ونیوله، او د جندول سرې مجبوراً کوڼه تېر ته لاړل، چې د هغه ځائې نه بیا عمراخان د پنجکوړې لاندې خپوته بوتلل، بیا دوا ړو د لوخپل فوځونه راټول کړل، او په دې د ول ئې ځائې په ځائې واچول :- د دیر خان د خپل نیم قوت سره په شهزادګۍ کښې د هغهٔ ځوئې محمد شریف (موجوده نواب) د نیم قوت سره د سیند په بله غاړه په لنډۍ کښې عمراخان او میاں ګل په خپله کښې د سیند په دواړو اړخونو د فیض په کلی د دوئې ترمنځ یوه سرپه سر نښته وشوه، او څنګه چې تیارهٔ ولګېدله، دواړو ډلو خپلې لښکرې بېرته په شا ه بوتلې. محمد شریف په سیند پورېوتو او د مالاکنډ علاقې ته لاړو.

دواړو ډلو د ځان د لا مضبوطولو ضرورت محسوس کړو. د دیرخان د چترال مهتر ته د کمک خواست وکړ، او عمراخان بخپله د مدد د غوښتلو د پاره د نلوګۍ په خان پسې لاړو، د ناوګۍ خان د خپلو پیروکارو، شموزو، علی زو، مندل اتمانخېلو، ماموندو او سلارزو یو کوټلے لښکر د هغهٔ د کمک د پاره راوستلو، عمراخان چې خپل شاه ته دا دومره زور ور قوت ولیدهٔ، نو دا خیال ئې جوړ شو، چې شاید اوس هغه "د واخله راکړه" په طریقه د برخهٔ حاصلولے شی، او د دیرخان ته ئې دا پېشکش وکړ، چې که چرې تهٔ ماته د کوڼه تېر او د رود او پنجکوړې د سیند دیو ځائې کېدو د بنې غاړې ترمنځ علاقه په خوښه راکوې، نو خبره په امن

نا که طریقه حل کېدلے نشي ، دا پېشکش رد کړے شو ملو د سپرلي په موسم کښې د مالاکنډ د سیمې په خاوره کښې یو لویه جګړه وشوه چې مېکښې د دیر خان ماتې وخوړله ، او بېرته شهزادګۍ ته وتښتېدلے شو عمراخان یو ځل بیا کونړ ته تېر او ځلور کلي نور قبضه کړل ، چونکې په دې وخت کښې عمراخان د دې جرګه وُ ، چې خپل ځان پخپله وساتي نو د ناوګۍ خان خپلې علاقې ته بېرته لاړو ، د فیض علی کلي چې د عمراخان تر شاه ( عقب ) واقع وُ بیا هم د دیر د خان مرستے نه پرېښودله دا حالت ترمنی پورې وُ ، او بیا هغه پخپله قبضه کښې واخست ، د دې نه علاوه ئې د سدو نه بره د خونګي کلے هم ونیوه ، میاں ګل چې کله د عمراخان دا تېز پرمختګ ولید ، نو په زړه کښې ئې ورو ورو حسد پیدا شو .

سنه ۱۸۹۲ء

د میاں ګل او عمراخان ترمنځ د یو بل سره د مرستې تعلق پای ئې ته ورسېد او عمراخان په فوري ډول اډینزۍ ونیوله ، او د سپرلي په موسم کښې ئې هلته یوه چوکۍ جوړه کړه ، وروسته بیا په اوړي کښې میاں ګل په ناڅاپي ډول په دې چوکۍ ( لښکر کوټ ) حمله وکړه او په چوکۍ کښې موجود ټول سړي ئې ووژل ، او بیا ئې په بشپړه کښې خپل لښکر ډېره کړ ، عمراخان چې کله د دې واقعې نه خبر شو نو سمدستي د باجوړ نه راروان شو ، او هم په دغه شپه د تالاش په لار شوې ته ورسېده ، د سبا ختلو نه مخکښې ئې د میاں ګل په سرو حمله وکړله ، او هغوئې ئې اوچت کړه ، ترمنی پورې هغه

په تړلو ادینزۍ قبضه وکړله. ډاکټر مکنیر (Dr. Mc Nair) په دیر تېر شو او ترچترال پورې لاړو. هغه روميې پوړي وُ، چې دي علاقې ته داخل شو، اتمانخېلو د پېرنګی په علاقه کښې د ځارو ځو غلاګانې وکړې، او (۳۰۰) روپۍ جرمانه شو.

**سنه ۱۸۸۳ ء:**

د اخون د مرګ نه پس د دیر د رحمت الله خان او د میاګل ترمنځ شخړه روانه وه، د دې کال په ابتدا کښې د دوئ په مينځ کښې داسې معاهده وشوه، چې د دیر په ملېزو او نورو ځایونو کښې به د رحمت الله راج وی، او په سوات کښې به هیڅ غرض نه لری یعنې دا به د میاګل سره وی.

په دې وخت کښې مکرانې ملا راپیدا شو، د ده نوم ابوبکر وُ او په پیدائشی دَوَل د کابل وُ، ځنې خلک وائي، چې هغه د کابل نه عمراخان ته د مشکلاتو پیدا کولو د پاره رالیږل شوی وُ. هغه د متکی اتمانخېلو په علاقه کښې مېشته شو، د بزرګۍ تیس ئې لاړو او بې شماره مریدان ئې پیدا شول،

د ژمې په موسم کښې د ناوګی خان د خپلو سرو سره باړوې ته لاړو او هلته ئې د عمراخان سره ولیدل، عمراخان هغهٔ ته په میدان د شریکې حملې وینا وکړله، ولې د مکرانې ملا په مشوره هغهٔ د عمراخان خبره ونهٔ منله، او عمراخان بې د هغهٔ نه لاړو، ولې په کوټ کښې دیره چونکه جوړولو نه اخوا ئې نور هیڅ هم ونهٔ کړے شول، او بېرته جندول ته ستون شو. البته په

پسرلي کښې هغه بېرته میدان ته راغے او د دیرخان ئې د مخه نیولو هڅه وکړله، خو لکه د مخکښې غونډې بیا ناکامیابه شو، خو بیا هم عمراخان په میدان کښې څۀ ډېر په زړۀ پورې کټه ونۀ کړله، او د کال باقي برخه ئې صرف د دوکړې اوکوټکې نه چاپېره پخپل پوزیشن مضبوطولو کښې تېره کړله.

## سنه ۱۸۹۴ ع :-

په پسرلي کښې عمراخان یو ځل بیا د شهزادګۍ د نیولو د پاره ملا وتړله، ځکه چې د دې نه پس په میدان کښې د هغۀ په لښکر د پنجکوړې له اړخه د دیر د خان د حملې امکان ختمېدو. د شهزادګۍ د یوشرونکي ملک تورلالي د مقامي بډتیا او مشورې په برکت هغه په دې مقصد کښې کامیاب شو، لوصیح خان ئې د لوئې تاوان ورکولو نه پس له دې ځایه وشړلو، هغه بیا میدان ته ورسېدۀ، چرته چې د سردارخان سره هغۀ پټه دسیسه جوړه کړې وه او اخستې ئې وُ، سردارخان هغه پرېښود چې په ټول میدان قبضه وکړي، هم دغه چل ئې لاندې تر پنجکوړې پورې د نصرالدین د سیمې د نیولو د پاره هم وکړ، په دې موقع د دیر د خان خوری محمد شریف د پلار سره بې وفائي وکړله او عمراخان له ئې کمک ورکړ، په لوړې کښې سردارخان د دیرخان دې ته راضي کړ، چې د برول باندې هغۀ (سردارخان) ته په دې شرط حواله کړي، چې هغه به د عمراخان او دیر ترمنځ د بفر ( Beuffer ) رول لوبوي.

په اکتوبر کښې د دیرخان رحمت الله خان خوله چې

د عمراخان مخالف وُ، حق ورسېد او د هغهٔ په ځاې د هغهٔ ځوئ محمد شريف خان (چې د ميدان باندې د سردار خان د خور ځوئ وُ) مشر شو، چې په موجوده وخت کښې د دير نواب دے په دې وخت کښې مکرانی ملا د عمراخان خلاف کوټې وهل شروع کړې وو، هغهٔ وئيل چې د عمراخان حکمرانی د شريعت مطابق نه ده، او د مذهبی قهر وغضب په حالت کښې ورسره ملاقات پکار دے، د دې د پاره ملا وجه دا ښودله چې هغهٔ (عمراخان) په مياں کل حمله کړې ده، ملا د نلوګه خان، سلارزی، او په بابو کړه کښې د پښت خانان د ځان سره بوتلل او په باړوه کښې ئې د عمراخان سره وليدل، او د ټولو په مخ کښې ئې ملامته کړې، جرمانه ئې ورباندې ولګوله، او دا وعده ئې ترې واخستله، چې هغه به هغه هر څهٔ واپس کوی، کوم چې ئې د مياں کل د سرو نه دوه کاله وړاندې په شوه کښې اخستی وو. په دې موقعه هغهٔ ښلور کلی په مونډه کښې، دوه په تور کښې او ښلور په باړوه کښې هم وسېزل هسې خو په دې موقعه دا سې ښکارېده چې عمراخان دا سزاګانې په قلاره ومنلې، ولې کله چې دا نورخانان د جندول نه لاړل، نو هغه سمدستی مخ په کښته د سوات په علاقه ورغے، د رانيزو په علاقه ئې حمله وکړه، او الله ډنډ ئې وسېزه او بېرته جندول ته ستون شو.

سنه ۱۸۸۵ء :-

د عمراخان په عدم موجوديت کښې د هغهٔ ورونو د

دمونډه میرحسن او د نورو میرافضل د دیر د خان سره غوږ نږدې کړو او دسیسه یې جوړه کړله، عمراخان چې کله واپس راتلو، نو په مونډه کښې شپې ته پاتې شو، کله چې کورېانو د مانبام په لمانځه ودرېدل، نو عمراخان د دې موقع نه فائده اوچته کړه، او په مونډه یې د خپلو پنځو سړو سره د چوڼۍ په یو برج قبضه وکړله ددې په نتیجه کښې داسې یو حالت جوړ شو، چې دواړه ډلې د یو بل په محاصره کښې راغلې د دې حالت د ختمولو د پاره د مسکینې نه د هغه بل ورور محمد شاه خان راورسېده، د لوئې دروازې لاندې یې لار وکښتله، او دده کمک یې وکړ بیا میرحسن او میرافضل دواړه په لوړه ډول د باجوړ نه و تښتېدل.

ددې کال د سپرلي په اول کښې عمراخان د پښنور په یو مستري خلوں د زېړو ( Brass ) توپې جوړې کړې وې اوبیه یې د اسمارنه راوړې وه، دا توپې هغه په برغولئه کښې د دیر د خان په چوڼۍ استعمال کړلې، خو مقصد یې حاصل نه شو، نو ځکه یې لښکر سپین درې ته وګرځولو، او ددې توپخانې په برکت یې ګنته وکړله، د سپین درې او راغې چوڼۍ یې ونېولې، د دې نه علاوه یې د رباط چوڼۍ هم حاصله کړله ځکه چې د د غرځای خان د هغه سره لاس یو کړې، د دې نه پس هغه بیا د بارون محاصره وکړله، او د دې خان، فهم حات وړته مزاحمت وکړ، دا ځاې د عمراخان د توقع نه زیات سخت

ثابت شو. او دکال ترپایۍ پورې هغهٔ بارون وانهٔ اخستلے شو.

## سنه ۱۸۸۶ ء :-

د سپرلی په موسم کښې فهم جان خان د سلطانخېلو ،
پینده خېلو او د دیر د خان د سرو یو شرلیک قوت جوړ کړو
او د بارون سره نزدې ئې په عمراخان حمله وکړله ، او ماتې
ئې ورکړله . د هغهٔ د زېړو د توپو نه ئې هم یوه په قبضه کښې
واخستله او هغه ئې بېرته راتګ ته وخغلولو ، رباط یو ځل بیا
د دیر د خان په ولقه کښې ورغے ، په دې کامیابۍ ئې قناعت
ونهٔ کړو ، او فهم جان او د دیر خان په اوړي کښې د عمراخان
خلاف لښکر راوولیسته . عمراخان ورته بارغولے ته راووتلو ،
او هغوئې ته ئې ماتې ورکړله ، او یو ځل بیا تر بارون پورې ورسیدهٔ
بارون ئې محاصره کړو ، خو په دې وار هم د ناکامۍ سره مخ شو.

## سنه ۱۸۸۷ ء :-

په دې وخت کښې یوه پېښه داسې وشوه ، چې ټخپله خو
وړه وه ، ولې د ډېرو واقعاتو سر ئې کېښود ، د مایار په بازار
کښې یو هندو بنیا د مکرانی ملا یو مرید ته سپورې ستغې ووې
د دې هندو په حقله ویلے شول ، چې پهٔ رسول پاک او اسلام ئې بد
ویلی دی . ملا غوښتنه وکړله چې هندو دې ووژلے شی ، ولې
عمراخان د دې نه انکار وکړو ، ځکه چې هندو منکر وُ ، ملا بیا
عمراخان مکرانی ته راوغوښتو ، خو د ملا لهٔ خوا د ټکو د وېرې
هغهٔ دا خواست ونهٔ منلو ، البته هغهٔ د ملا سره د میاں کلی او مونږ

ترمنځ د سیند په غاړه ملاقات ته تیار شو، ملا او خان دواړه تیا کلي ځای ته د خپلو کهنو وسله والو سره روان شول خو ملا په آخره کښې زړه بایلوده او موقعي ته حاضر نه شو، عمرا خان د میان کلي خواته په هغه حمله وکړله، ملا ئې وښولو، او دری ورځې ئې بندی وساتلو او بیائې خوشې کړ، او ورته ئې ووې، چې بیا دې په بلجوړ کښې ونه وینم، ملا نا وګه ته لاړ او هلته ئې په عمرا خان د کفر فتوي ولګوله، او د هغه خلاف ئې د جهاد د پاره قبیلې راوغوښتې. د ناوګه خان، سلارزی او ماموند په میان کلي کښې د جنګ د پاره راغونډ شول. د عمرا خان سره بې د خپل جنډولي لښکر نور هیڅوک هم نه وو، خو بیا هم هغه حمله وکړله، او دا زور ور لښکر ئې او چت کړ. ملا د جهاد خبره پرې نښودله، دا پلا د دیر او ناوګي خانان میان ګل، اتما نخېل، سلارزی او ماموند ټول د عمرا خان خلاف را پورته شول. عمرا خان د خپل لښکر په واسطه بې د څه وېرې ترمې په دې لوئې اتحادی قوت حمله وکړله، خو څه ئې ترې جوړ نه کړل، او په دې مجبوره شو چې بېرته جنډول ته لاړ شي چرته چې بیا دوئې د هغه د ټنګولو هڅه ونه کړله، عمرا خان د د غــه کسانو د فطرت نه خبر وُ، د چا سره چې ئې واسطه راغلې وه، نو ځکه ئې د ځان سره فیصله وکړه، چې تر هغه وخته پورې به په دې غرض ونه لړی، ترڅو چې دوئې په خپلو کښې د هغو علاقو په تقسیم ورانۍ شوي نه وي، کومې چې ئې د ده نه نیولې وې. ورو سته بیا

وخت ثابته کړه، چې دا ډېره ښه فیصله وه .

**سنه ۱۸۸۸ ع :-**

وایسرای د جنورۍ په میاشت کښې د پېښور دوره وکړله، اوعمراخان د شهزادګۍ سره خواته د کوټو میان د خېل نمائنده په حیث د هغهٔ دربار ته ولېږهٔ، میان کل د ډېر خفګان سره سوات ته ستون شو، ځکه چې د دیر د خان او د ناوګۍ د خان سره په شخړو کښې د هغهٔ لاس بر پاتې شوې وُ، د ناوګۍ خان د رود او پنجکوړې د سیندونو دیو ځای کېدو په مقام په والۍ کښې یوه چوکۍ جوړه کړه، او د دیر خان ته ئې دا تجویز وړاندې کړ، چې هغه د عمراخان سرې د برغولي نه وباسی، هغهٔ ورسره دا هم زیاته کړله، چې دا به ډېره عقلمندانه منصوبه وی، که چرې هغه (دیرخان) د پائي خپلو علاقه د هغهٔ د دوستۍ په بدل کښې د ناوګۍ خان ته حواله کړي، د دیرخان جواب ورکړو چې دوستی ډېر ښهٔ شے دے، خو که چرې دا ونج وپار (سوا) په نقد و پیسو وشی، نو ډېره به ښهٔ وی، دې خبرې د ناوګۍ د خان د خیالاتو سره سمون نهٔ خوړ، او په نتیجه کښې ئې معامله جګړې ته ورسېدله، په واپسی کښې خان د سیند ښئ غاړې ته پورېوتلو، عمراخان دا موقع د لاسه ورنهٔ کړه، او دیوې ناڅاپي حملې په ذریعه ئې د کلاله خواته د ناوګۍ لښکر د بې نظمۍ په سټ حالت کښې ګیر کړو، ماتې ئې ورکړله، او د خان ورور ئې مرګ په سبا له ئې د تښتېدونکی لښکر پاتې برخه د باندو ګۍ سره نزدې

نوزهم وتکوله او عین ترجاره پورې ورپسې لاړو، د عمرا خان دانتقام د ویرې مکراني ملا کابل ته وتښتېد، او چرې هم دې علاقې ته رانغلو. عمرا خان بیا د شکرتې چونې جوړه کړه او د اوړي په موسم کښې ئې د پائي خېلو علاقه واپس واخستله او د پنجکوړې په بره تر باروڼ پورې ورسېد، ولې د باروڼ په اخستلو کښې بیا هم بریالے نه شو.

**۱۸۹۱ کال ۽:-**

اوس د هغه خلاف یو هم د اهمیت وړ اتحاد نه و، نو ځکه عمرا خان مخ په کښته د تلاش په لار وار په وار وړاندې لاړو او ترچکدرې پورې چې ترې خوره علاقه تللې وه، هغه ئې بېرته واخستله، د ۱۸۸۲ کال نه راپه دې خوا عمرا خان د پېښور د کمشنر سره د خط وکتابت نامربوط (Desultony) رابطه ساتلې وه. د هغه د خطونو نچوړ دا و، چې د پېرنګي حکومت د ښه او موثر خدمت د پاره هغه ته توپکې او کارتوس په کار دی، د دې نه علاوه هغه دا باور هم غونښتلو چې هغه به د امیر نه ازاد وی، تر دې وخته پورې زمونږ د سوکه سرحدی تانې تر ګلګت او چترال پورې رسېدلې وې، او د دې کال په منی کښې د پنجکوړې په سیمه چترال ته د ډاک د لارې د ایستلو په غرض د عمرا خان سره خبرې اترې شروع شوې، حکومت د ځینې شرطونو سره دې ته راضی شو، چې هغه ته یو خاص شمېر توپکې ورکړې، او دا اجازت هم ورکړې، چې به

هند کښې ځان له یو خاص مقدار کارتوس واخلي، ولې کله چې دا الوطنامه ولیږلے شوه، نو هغه برخه ئې بې د څه اعتراضه لاسلیک کړله. په کومه کښې چې په هغه ذمه واری اچولے شوې وې، ولې په کومه برخه کښې چې د حکومت د ذمه واریو ذکر وُ. په هغې کښې ئې رد و بدل وکړو، او حکومت دې ته غاړه نه کېښوده نو ځکه معاهده ونه شوه. خو بیا هم په عین وخت کښې عمراخان په هند کښې دیو مقدار وسلې او کارتوسو د اخستلو تابیا وکړله، چې په راتلونکی وخت کښې ئې هغه ته ډېره ګټه ورسوله

په ژمې کښې کوم تېر او لنډی د عمراخان نه بغاوت وکړو او د دیر د خان سره ملګری شول. خو عمراخان په لنډی کښې د دیر په خان حمله وکړله، ماتې ئې ورکړله او دواړه چوڼې ئې بیا ونیولې، هم په دې وخت د میدان بانډی سردارخان خپله وفاداري بدله کړله، او د دیر د خان سره تړل شو، دوی خپل شریک قوت په جان بټی کوتل کښې راغونډ کړ، او سخته جنګړه ونښتله، وسلې شی چې دا جګړه دوه ورځې جاری وه یو سل شپېته[۱۶۰] کسان پکښې مړه شول، او عمراخان بریالے شو، په دې پسې هغه شاهی ته پورې وتلو، او قبضه ئې پرې وکړه، سردارخان یو ځل بیا وفاداري بدله کړله، او د هغه په کمک عمراخان بیرول بانډئ او دیرخان چوڼه ونیول، بیا فهم جان د سلطانخیلو او پائنده خیلو په ملګرتیا د بارون خواته د خپل قوت مظاهره وکړله، د عمراخان ورور محمدشاه خان هغه ته ماتې ورکړله، بارون ئې

بیا ونیولو، هغه توپه يې ترې بېرته واخستله کومه چې هغهٔ د عمراخان نه په محاصره کښې اخستې وه، د دې نه علاوه يې رباط هم ونیولو. بیا د دیر د خان او عمراخان ترمنځ سوله (صلح) وشوه، عمراخان ته يې د دیرخان چوغه نه علاوه د برول د ترکلانو تولې علاقه حواله کړله، اوس سلطان خېلو خپله ملکرتیا د عمراخان سره اعلان کړله، په دې پسې د دیر خان بده ورځ جوړه شوله، د چترال مهتر د لواری د اړخه په هغهٔ حمله وکړله، او ډېر زیان يې ورورسولو، اګرچې هغه بېرته چترال ته ستون شو، کوهستانیانو هم په تل کښې په هغهٔ حمله وکړله، ۱۵۰ سرې يې ترې مړه کړل، او توپکې يې ترې واخستې د هغهٔ سره اوس صرف پاینده خېل په دلهٔ کښې پاتې شول. او بغیر له دې نه يې بله لار پاتې نه شوه چې د عمراخان خلاف د مهتر نه کمک وغواړي، ځکه چې د هغهٔ سره دا وېره وه چې په دې کمزورۍ حالت کښې عمراخان د هر ځای حمله کولی شي، خو بیا هم مهتر د درخواست ونه منلو.

سنه ۱۸۹۰ :-

د هغهٔ اندېښنې رښتیا ثابتې شوې ځکه چې په مئي کښې عمراخان په دیرخان چوغه حمله وکړله، د هغهٔ (۲۰) سرې يې سره د توپکو ونیول او بیا ورله د ناوګۍ او اسمارخانان هم راوربه بدل، هغوې په سندروال باندې ورووختل، چرته چې د دیرخان د شپې په تیاره کښې د حملې په ذریعه دوې تر

یې حده خراب کړل ، ولې سباته بیا دوی بریالی شول ، عمراخان بیا د سرېټ اتې او الله چوګنه ونیولې ، د دیر د بدبخته خان د بدمرغه پیالې لا پوره ډکه شوې نه وه ، چې د هغه خپل ورور اشرف خان د هغه خلاف شو او د فلتخان سره یې لاس یو کړ او هغه یې د دیر نه وشاړه . هغه په ورمبي په بباوړکښې پناه واخستله ، بیا یې د اوشرې په سیمه نیالګ کښې او په آخرکښې بر سوات ته وتښتېده د چرته نه چې بیا د کوز سوات تاڼې ته راغئ .

چې متې رالټلو نو د دیر د خان ټوله علاقه د عمراخان په لاس کښې وه د عمراخان ورور محمد شاه خان یې ګورنر و ، د خلکو نه به یې عایدات اخستل ، او د پنجکوړې د لرګیو تجارت یې هم په خپل لاس کښې اخستې و ، جان بتې هم دا وخت د عمراخان په قبضه کښې وه ، د دې ځای اصل مشر د دیر د خان وفادار و ، او کله چې عمراخان میدان او براول ونیول نو هغه د دې ځای نه تښتېدلے و ، د عمراخان نامزد خان د ناړې اکرم جان و ، چې په اصل کښې د کامدېش مسلمان شوے کافر و ، د جان بتې غیرت خان په دوامدار ډول جلا وطن پاتې شو ، او په سنه ۱۸۹۵ء کښې چې کله د دیر خان بېرته راغے ، نو هغه هم ورسره په ځای شو . د هغه ځوئ عبدالرحمٰن چې د نواب دخور سره یې واده کړے دے ، اوس د جان بتې موجوده خان دے . د خال خان هم د دیر د خان سره سوات ته

تښتېدلے وُ ۔ او هم د هغهٔ سره په ۱۸۹۵ سنه ء کښې خپل ځاې ته راغے ۔

سنه ۱۸۹۱ء :۔

دا سمار شاه تماس خان وو ژلے شو د هغهٔ لوړ د امیر ځوئ حبیب الله خان ته کوژدن شوه ، افغان سپه سالار ۔ غلام حیدر خان تر کابله د هغې د بدرګه کولو په بهانه اسمار ته راغے او د افغانی فوځ په زور ئې اسمار قبضه کړ ، خو د هغهٔ اصل مقصد داوُ ، چې د عمرا خان اثر د قابو لاندې راولی ، هغهٔ د ناوګۍ د خان سره هم دا دسیسه جوړه کړله ، چې هغه (د ناوګۍ خان) به د اسمار د خانۍ د پاره د افغان اسېدوار چې د خدای بخښلی خان ماشوم ځوئ وه مرسته کوی ، په داسې حال کښې چې عمرا خان د خدای بخښلی خان د میرلی نورور غلام خان چې د هغهٔ د لرایز وُ په طرف ولاړ وُ غلام جان د عمرا خان په کمک په اسمار کښې مشری تر لاسه کړه ۔ د ناوګۍ خان د عمرا خان د خلاف د جندول نه علاوه نور د ټولو نر کلانو لښکر راغونډ کړ ، عمرا خان د شمونړې اتمانخېل په علاقه کښې په کړنګۍ او کولاله کښې مورچې جوړې کړې ، دلته په هغهٔ حمله وشوه خو دښمن ئې د دبر زیات تاوان سره په شاه وتښتولو ، په عین وخت کښې میاګل د دیر د خان د طرفه د سوات نه مخ په وړاندې راغے او شیرینګل ئې ونیولو ، خو عمرا خان چې کله د کولاله نه راستون شو ، نو هغهٔ ته ئې هم ماتې ورکړله ، د محمد شاه خان په رضا د هغهٔ د تره ځوئ عبدالغنی د هغهٔ په ځاې د دیر ګورنر (والی) جوړ شو ۔

پهٔ مئی کښې د لعلپورې خان د امیر د طرفه سپه سالار و
کمارهٔ . او د مهمند لنبکر سره یې د ناوګۍ د خان مرسته
کړې، خو د شموزو په علاقه باندې کښې یې دوی ته سخته ماتې
ورکړله، سرهٔ له دې چې د عمراخان سرې د دوی د نیمې برابر
وو، شموزې په پوره دول هغهٔ ته تسلیم شول، اوس د ناوګۍ خان
دا هڅه کوله چې اسمار ونیسي خو عمراخان دې ته پرې نښودهٔ

## سنه ۱۸۹۲ ع:-

د تاڼې د خانخیلو دا له د ګنډو د خان او د عمراخان سره زمونږ دامې سمون جوړ شو، چې په لومړې ځل د کوز سوات او دیرنه چترال ته د ډاک لاره پرانستے شوه، او حکومت دې ته رضا شو چې دالاندې ذکر شوې ماجبونه ورکړي. د تاڼې اسلام خان او عنایت خان او د الله ډنډ سعادت خان ته (۲٤۰۰) روپۍ د سرې په سر سالانه (۳۰۲)، روپۍ د یو ډاک وړونکي د تنخواه (معاش) پهٔ دول، او د پلې سربلند خان ته (۵۰۰) روپۍ سالانه. دالار د ۱۸۹۵ سنه پورې عمراخان وساتله، او پهٔ دې دوران کښې ډاک ته د هیڅ قسمه نقصان ونهٔ رسید .

پهٔ مارچ کښې سپه سالار غلام حیدر اسمار قبضه کړ، او بیا وروسته په جون کښې یې شورتن ته فوځونه ولیږل، خو ماموندو او عمراخان یې مقابله وکړله، او افغانان یې د دې ځایٔ نه وویستل، په عین وخت کښې د چترال مهتر کوشش کاوه چې د دیر د خان په مرسته کښې یوسفزي د عمراخان خلاف

راپورټ کړي ، درویش ته ئې خپل فوځ واستولو او کافر ئې په پرله پسې دوړل تارپاکونو (یرغلونو) ته راوپاروُل ، د ناوګۍ خان هم د هغهٔ بدخواه وُ ، پهٔ دې حالاتو کښې عمرا خان د پیرنګی حکامو نه د وسلې او کارتوسو غوښتنه وکړله ، خو هغوئ ورنهٔ منله ، پهٔ دې هغه خفه شو ، خو د ډاک د لارې پهٔ حواله ئې خپل کار جاری وساتهٔ ، حکومت هغهٔ ته دا یقین ورکړے وُ ، چې ترڅو پورې هغهٔ پخپله زمونږ سره دښمنی نهٔ وی پیل کړی ، نوکهٔ د سپه سالار سره د شخړې پهٔ لړکښې هرڅهٔ کوی ، حکومت به ورباندې غرض نهٔ لری .

پهٔ دې وخت کښې د چترال مهتر امان الملک مړ شو ، او د هغهٔ پهٔ ځای افضل الملک مشر شو ، ولې څو ورځې وروسته د شیر افضل د لاسه ووژلے شو او نظام الملک مهتر جوړ شو د حکومت د باور په ډاډ عمرا خان اوس په چترال کښې کوټې وهل شروع کړل ، او پهٔ ظاهره د کافرو خلاف ئې فوځونه نرسات ته ولیږل ، خو په حقیقت کښې د دې عمل تر شا ه مقصد دا وُ ، چې په اسمار کښې د موجوده افغان قواوُ (فوځ) سره خپل توازن برابر کړي ، پهٔ دې کښې شک نشته چې د کافرو یرغلونه د مسلمانو کروندګرو د پاره د ویرې او د هشت یو مستقله پدیده وه ، او کله چې به عمرا خان د هغوئ نه د بدل اخستو د پاره راپاڅېدو ، نو حکومت به اجازت نهٔ ورکاوهٔ ، او هم دا رویه بیا وروسته زمونږ نه د هغهٔ د خفګان لویه وجه جوړه شوه .

## سنه ۱۸۹۳ ء:-

عمراخان اوس هڅه کوله چې خپلو فتوحاتو ته تر ناوګۍ پورې پراختیا ورکړي، او د دې مقصد د پاره یې د بابو ګړي د علاقې په "خله" کښې د جار په "ولایت خان حمله وکړله بره سالارزی د عمراخان سره ملګري شول او کوز سالارزي د ناوګۍ د خان په ډله شو، په "رغه کښې جنګ وشو، او عمراخان پکښې خراب شو، هم په دې وخت کښې د دیرخان د سوات نه راغی او د هغهٔ په ملاتړ کښې ادیتزي او د تالاش خلک، د شرخېل سلطانخېل او پاینده خېل راپاڅېدل، او د راغه، رباط، بارون او برغولي چوقې یې د عمراخان نه واخستلې، عمراخان د ناوګۍ د خان سره تیره کښېوله، او د فرورۍ په میاشت کښې یې د هغه چونبیو د حاصلولو د پاره بیا لښکر ولیږهٔ کومې چې د شهزادګۍ نه بره د دهٔ نه اخستلې شوې وې، او په مارچ، اپریل مئ او جون کښې یې د لاسه تللې تولې علاقه بېرته ونیوله او کومې قبیلې چې د دهٔ خلاف راپاڅېدلې وې هغوئ تولو ته یې سخته سزا ورکړله.



مهتر نظام الملک د خپل ورور امیرالملک سره د ګوزارې د پیسو (Subsistence allownce) په مسئله د مؤخر الذکر په خیال ناوړه سلوک وکړ، چې د دې په نتیجه کښې هغه جندول ته راغی او د مهتر خلاف یې خپل وزن د عمراخان په تله کښې واچولو، د نومبر په میاشت کښې عمراخان د حکومت د

غوښتنونه د سرغړونې ښېنې ښېنانې ورکول شروع کړل ، او دا اعلان ئې وکړ ، چې کهٔ چېرې هغهٔ ته پهٔ هندکښې د وسلې او کارتوس اخستلو اجازت نهٔ ورکول کېږی ، نو هغه به د سرکاری ډاک دلارې د ساتنې هیڅ خیال ونهٔ ساتی . په دې کښې شک نشته ، چې داقسې عمل هغهٔ د کابل سره د رابطې د اثر لاندې وکړ . هغهٔ پهٔ کلکته کښې د پیرنګی ایجنټ کرنل ډیورنډ سره د ملاقات تجویز هم رد کړ .

سنه ۱۸۹۴ء :-

دا د عمراخان د اقتدار د عروج وخت وُ . هغه تولې علاقې ئې بېرته حاصلې کړې ، کومې چې هغهٔ د فتوحاتو په برکت د زیات وخت د پاره پهٔ خپله قبضه کښې ساتلې وې او پهٔ فعال ډول ئې د چترال پهٔ معاملو کښې ګډون وهل شروع کړل البته مناسب نهٔ ده ، چې پهٔ دې رپورټ کښې د چترال جارې پهٔ پوره ډول ذکر شی .

پهٔ مئی کښې د اسمار د سرحدونو د کمیشن د لېږلو تابیا وشوه ، او عمراخان ته بلنه ورکړے شوه چې یا پخپله راشی ، او یا خپل نمائینده راولېږی ، خو عمراخان یوه هم ونهٔ کړله ، پهٔ دسمبر کښې د مسټر اډ‌لی د مشرۍ لاندې مېشن شروع شو ، د دې مقصد دا وُ ، چې د ډیورنډ د معاهدې پهٔ رڼا کښې سرحدونه وټاکی ، د امیر افسرانو په دې لړ کښې ډېرې ستونځې پیدا کړې ځکه چې هغوئ ترمېچنی او شېقدر پورې د مهمندو علاقه د

کرښي نه د افغانستان خواته حسابول د سرحد د ابرخه ستر اوسه پورې په حتمي دول نه ؤ ټاکلې شوې .

## ۱۸۹۵ سنه ء :-

د ۱۸۹۵ سنه ء کال د واقعاتو تاریخ د مختلفو کتابونو نه علاوه په سرکاري رپوټونو کښې په بشپړ دول لیکلې شوې دے ، نوځکه په دې رپورټ کښې د ښکاره اوامو واقعاتو لنډ ذکر کوو . همدغه صورتحال د ۱۸۹٦ سنه ء کال د واقعاتو هم دے . چې وروسته به ئې لنډیز وړاندې شي .

د جنورۍ په میاشت کښې امیرالملک د جندول نه چترال ته راستون شو . نظام الملک ئې مړکړ ، او د عمراخان نه ئې کمک وغوښتو . خو ډیر ژر ئې خپل خواست بیرته واخست ، بیا شیرافضل د افغانی حکامو په پټه مرسته د کابل نه راکوز شو ، او د عمراخان سره ئې ځان وتاړو ، شیرافضل د مهترۍ دعوه لرله ، او عمراخان ئې په دې بنیاد مرسته کوله ، چې امیرالملک د هغه (عمراخان) سره تعلق ساتلو ته جوړ نه ؤ ، شیرافضل او عمراخان په چترال ورغلل ، د دې سره یوه سلسله واقعات منځ ته راغلل ، چې بالاخره خبره د چترال د چوکۍ محاصرې ته ورسیدله ، چې د مارچ په دریم تاریخ ئې ابتداء وشوه . عمراخان د چترال کلکته ، پېښور او بیا د اسمار د سرحدی کمیشن د پیرنګی افسرانو په اخطارونو (دړکو) او مشورو هیڅ غوږ ونه ګرولو ، او دا ضروری شوه چې چترال ریلیف فورس ته حرکت

ورکړې شي، دا خبره د پېراهه ده او د شک ځای پکښې هم نشته، چې د مارچ تر يوولسمې نېټې پورې د پېښور پېرنګي افسران د دې فورس د لېږلو د ارادې او تيارۍ نه ناخبره وو، په داسې حال کښې چې امير، هډې ملا نجم الدين او د پولې تولې قبيلې په شپږم مارچ خبرې وې.

په اوولسم مارچ عمراخان ته اخرى اخطار ليک ـ ولېږل شو، قبيلو ته دا وضاحت وشو، چې مونږ د څه مقصد د پاره د هغوى په علاقه تېرېدل غواړو، هغوى ته دا بلوروکړې شو، چې که چرې هغوى په لاره کښې زمونږ فوځونه ونه چېړل، نو مونږ هغوى ته يا د هغوى مال او جايداد ته د هيڅ قسمه نقصان رسول نه غواړو، همدارنګه حکومت دا اراده هم نه لري، چې د هغوى علاقه ونيسي، د تلوګې د صفدرخان ورور سردارخان او د جار ولايت خان د ناوګۍ د خان له اړخه په دې خاطر پېښور ته راغلل، چې د حکومت سره خبره سپينه کړي، د ناوګۍ خان د ډيورنډ د معاهدې تر لاسليک کولو پورې د امير نه شل زره روپۍ ماجب اخستے وُ، خو د دې نه روستو ئې هيڅ نه وو اخستي هغۀ ته د دولس زره روپو سالانه او زر ټوپکو پيشکش په دې شرط وشو، چې هغه به قبيلې په قابو کښې ساتي، او فوځونو ته به سامان رسوي او د خپله اړخه به ورسره مرسته کوي. دا شرط هغۀ ومنلو، خو د دې وېرې چې د فوځونو د بېرته راتللو نه وروسته به امير او عمراخان د هغوى خلاف ځوابي

کار روانۍ وکړي. د هغه رویه بې طرفه پاتې نشوه. د مانکي مُلا (یو با اثره ملا چې د پیرنګي په علاقه کښې اوسېدلو) او د میان ګلانو په منځ کښې په دې موقع غلط فهمي (سوی تفاهم) پیدا شوه، او په دې وجه زمونږ خلاف یونه شول د سمرانړیزه خلکو زمونږ سره د اوعده وکړله، چې هغوی به مونږ ته په خپله خاوره د تېرېدلو اجازت راکوي، او به کوز سوات کښې د خانخېلو او رانیزو خانانو ترخپله وسع پورې کوشش وکړي، چې په لاره کښې مونږ ته د هیڅ قسمه خنډوان جوړ نه شي.

د اپریل په ۱۲ رومبۍ نېټه رومبے بریګیډ د مردان نه لوند خوړ ته او دویم او دریم بریګیډونه جلاله ته روان شول، اصل منصوبه دا سې وه، چې رومبے بریګیډ به د مالاکنډ د لارې سوات ته داخلیږي، خو دا خبر راغے چې په مورو او سخاکوټ کښې خلکو د مزاحمت د پاره تیارے کړے دے، نو ځکه دریواړه بریګیډه په دویم تاریخ درګئ ته روان شول، په دریم تاریخ لې مالاکنډ ونیولو، او په څلورم تاریخ لومړے بریګیډ دخار او بټخېلې ته واوړېدلو، د اماندرې په مقام د دښمن سره لاس او ګریوان شو، بیا دا ټول فوځونه په سوات کښې ودرېدل، ځکه چې د مالاکنډ د لارې د ذخیرو (Stores) او نقلیه وسیلې (Transport) د لاسته راوړو سلسله د ځنډ سره مخامخ شوه، په پنځم

تاریخ د الہ ډنډ شریف خان را وړاندې شو، او د فوځونو د کمک اعلان یې وکړ، پهٔ تانه کښې د جنون پرستو یو لوی شمېر راغونډ شو، او خانانو ته دا حکم ورکړے شو، چې دا کسان د کلي خواته پرې بنډ دی، هغوي د حکم تعمیل وکړ، خو جنون پرستو بیا په داسې ځای کښې مورچې ونیولې، چې سنید ته تللې لار یې زمونږ د پاره خطرناکه کړله، فوځونو په شپږم تاریخ تاغې ته حرکت وکړو، او خانانو ته وویلې شول چې کهٔ چېرې دا خلک پهٔ فوري ډول خوارهٔ نهٔ شول، نو مونږ به فوځونه بر سوات ته ولېږو، او هغوي ټولو له به رنګ رنګ سزاګانې ورکړو۔ دې درکې پهٔ زړهٔ پورې کار وکړ.

د دیر خان محمد شریف خان چاچې تر اوسه پورې د بر سوات پهٔ مینګوره کښې د مهاجر پهٔ حیث ژوند کاوهٔ، پهٔ دویم تاریخ د پولیټیکل افسر میجر ډینې ( Deane ) سره پهٔ درګه کښې ولیدل، او د حکومت سره د مرستې خواهش یې ظاهر کړ، بېشکه چې د هغهٔ مقصد د خپل بابللی حیثیت بېرته حاصلول وو، هغهٔ ته وویلې شو چې هغه صرف زمونږ د فوځونو د ملګرتیا پهٔ تش اعلان نهٔ شی کولے، چې زمونږ په اوږو اقتدار ته ورسي. بلکې هغهٔ له پکار دی چې خپل اهمیت وښائي، او هغه داسې چې میدان ته راووځي او زمونږ پهٔ کمک کښې د عمرا خان خلاف خپلې قبیلې راپاڅوي، او نور هم پهٔ عوامي ډول خان د کار سړے ثابت کړي، کهٔ چرې دا کار یې زمونږ د تسلۍ مطابق وکړے شو، نو

موږ به ورته پيسې او وسله ورکړو، خو بيا هم زموږ د تللو نه روسته به يې دا خپله ذمه داري وي چې د حکومت د مرستې نه بغير خپل حيثيت وساتي، هغه د بريه خوشحالۍ دا شرطونه ومنل، او په دريم تاريخ د فوځونو سره په مالاکنډ واوړيده، په شپږم تاريخ د سوات په سيند پوريوتلو او د لرم په دره واوړيده.

په اووم تاريخ دويم بريګيډ په سيند پوريوتو او محمد شاه خان او د هغه ملګرو ته يې ماتې ورکړله، د خار کلے تسليم شو خو بيا هم تباه کړے شو، ځکه چې د دې کلي اوسيدونکو په اماندره کښې د مزاحمت کوونکو مرسته کړې وه، دويم بريګيډ په تنده سره پنجکوړې ته مخ په وړاندې لاړو. د اسيند د ويلې کيدونکې واورې له کبله په تيزۍ سره مخ په ختلو روان ؤ،

فوځې مرکزونه په اتم تاريخ چکدرې ته ورسيدل، د لته د دير د خان رپورټونه راغلل چې د پنجکوړې او ميدان باندې د لارې ټولې چوکۍ د هغه په لاس کښې دي، هغه ته حکم وليږلے شو، چې که امکان لري نو چې د چترال په چوکۍ د فشار (دباؤ) کمولو د پاره سړي وليږي، په يوولسم تاريخ فوځې مرکزونه پنجکوړې ته ورسيدل، او دلته شپږ ورځې وځنډيدل ځکه چې يو خواته سيند د پوريوتلو نه ؤ او بلې خواته د پل ترلو د پاره د لرګيو پيدا کول ګران وو.

هم په دې ورځ د لفټننټ فاولر او ايډورډز خوك چې په بارووه کښې د عمرا خان په جېل کښې وو، يو ياد داشت ـ

را ورسېد . په دیارلسم تاریخ عمراخان لفټننټ ایډوردز د سدوکیمپ ته راولېږه او د هغه په ذریعه ئې څنې سوالونه راواستول چې حکومت هغه ته په څه غصه دے؟ او ترکومه به د غسې وي؟ او هغه ته څه شرطونه وړاندې کول غواړي؟ په دیارلسم تاریخ په رانیکی کښې جګړه وشوه ، او ګائډز (Guids) پکښې ډېره تېنګه برخه واخستله ، په اوولسم[١٧] تاریخ فوځونه مخ په وړاندې د جندول علاقې ته ښوتل ، او د منډه سره نزدې یوه بله ښتبته وشوه په دې کښې هم او ددې نه وړاندې د رانیکی په جګړه کښې هم افغانی عسکرپه دریشی (uniform) کښې موجود وو او ځینې پکښې مړه هم شول.

په اتلسم[١٨] تاریخ د عمراخان د تښتې خبر راغے او په نولسم[١٩] تاریخ یو وړوکې فوځی غونډ د جان بټے په دره - بغیر د څه مزاحمت نه وروختلو ، په شلم تاریخ خبر راغے چې د چترال چوغه د مخالفینو دلاسه ووتله ، او شیرافضل باشغر ته وتښتېد . د دیرخان ته حکم وشو ، چې درې صرف بندې کړي او که ممکن وي نو چې ونې نیسی . او ددې دپاره چې دا کار یقینی شی که امکان لري نو هغه دې پخپله لاړ شی ، هغه په دې کارکښې کامیاب شو او په اوه ویشتم تاریخ ئې شیرافضل سره د یو شمېر مخورو چترالو د بندیانو په حیث دیرته راوستل دمځ په لومړي تاریخ شیرافضل او پنځه نور اهم قیدیان لاندې

هند ته ولېږلے شو.

فوځي مرکزونه په ۱۶ / مئ چترال ته ورسېدل او په اوويشتم مئ ئې بيا د چترال نه کوچ وکړو، چترال ارام شوے وُ، او د فوځ کار صرف دا انتظار کول وو، چې حکومت د چترال د دوا مداره قبضې او تلې راتلې د لارې خلاصولو په لړکښې څه فيصله کوي داحکم تر ۸، اتم ستمبره د انتظار نه پس دوئ ته د تار (Telegram) په ذريعه ملاؤ شو او په اتلسم[18] تاريخ ئې بيا تفصيل د ډاک په ذريعه راغے، په دې حکم کښې دا خبره سپينه شوې وه چې د چترال قبضه به نه پرېږدو او د نوښار، دير چترال لاره به خلاصه ساتو، د دې څلورو مياشتو په دوران کښې ورانکارۍ په قلاره نه وې ناست. او په يو وخت کښې خو زمونږ خلاف د کافي زور ور پاڅون علامې ښکاره شوې وې، ولې څه خاص د اهميت وړ واقعات ونه شول. البته د پښتو ځايونو نه وخت په وخت حملې په کيمپ د ورختلو څې او د لارې د کاروانونو لوټ داسې عملونه وو، چې مونږ ه پې پوزې له راورسېدې وو.

د دسمبر په يولسمه نېټه د ديرخان سره د چترال د لارې د ساتلو په تعلق خبرې شوې وخوړلو اوخان په معاهده دستخط وکړو. د دير نه د فوځونو واپسي په شلم ستمبر شروع شوه.

د عمرا خان د تښتېدو نه روستو، جندول په دې دوو ورېسل شو، بارو سيد احمد خان ته حواله شو، سمبر شېرافضل ته، ـ

شاهي، د محمد زمانخان ځامنو ته، چاودی میرحسن خان ته، د متل زین الله خان ته، تور میرافضل خان ته، مرحوم عبدالمجید خان ته، کس کوټ عبدالغنی خان ته او مسکینې د محمد شاه خان کورنۍ ته وسپارلې شول. تر څوارلسم اګست پورې زمونږ فوځونو جندول خالي کړے وُ.

د دیرخان دا ذمه واري واخستله چې هغه به د ډاک لاره خلاصه ساتي، که چیرې ټیلګراف ولګېدهٔ نو حفاظت به يې کوي همدارنګه سړک د لهوې څوکه او د کیمپونو ځمکه به په ښهٔ حالت کښې ساتي، او د لهوې سره د رابطې حفاظت به کوي، د دې په بدل کښې به هغهٔ ته لس زره روپۍ سالانهٔ ورکول کېدے شي، چې په دې کښې به د لهوې د ساتلو خرچ شامل نهٔ وي داخرچ به حکومت برداشت کوي او د ډاک د مالي مرستې پهٔ ډول به زر روپۍ سرې سرهم ورکوي. د نورو لس زره — سالانه روپو په بدل کښې هغه (د دیرخان) د هغه ټکسونو او چونګونه لاس په سر شو کوم چې به يې د اشریت نه تر چکدرې پورې د تجارتي مال په تېرېدلو اخستل. د تالاښ خان خېل او د راینږ و خانان او ملکان هم دې ته رضا شول چې د لس زره سالانه روپو پهٔ عوض د هغوی د علاقې نه د تجارتي مال پهٔ تېرېدلو چونګے و نهٔ نسي.

د مهم پهٔ دوران کښې افغان خاصه دار د میتې نه وتلي وو. او زمونږ د واپسۍ سره سم د ناوګۍ خان پهٔ د غه ځای

(میتي) دعوه وکړله، او د دغه وخت نه دا ځای د ناوګۍ د خان او مامړند و او مهمندو ترمنځ د شخړې هدوکی را روان دے.

د دیرخان چې بېرته په اقتدار کښې راغے، نو لازمه وه چې د دیر او باجوړ په مخوریزه کسانو کښې به هم ورسره بدلون راتلو. فهیم جان بارون ته راستون شو، عبد الرحمٰن خان جان بټی ته راغے او په برول کښې د محمد عمر (سردارخان) په ځای اورنګ زیب مشر شو.

په اووم ستمبر میجر ډینی د جنرل سر رابرټ لونه د چیف پولیټیکل افسر ذمه واری واخستله او د فوځي مرکز د عملي تړون مات شو. چونکې دا یقیني نه وه چې دا نوے انتظامي جوړښت به رومبۍ کښې خنګه کارکوي، فوځګه د چکدرې، مالاکنډ او درګه چوکۍ ترهغه وخته خالی نه کړے شوې ترڅو چې د حکومت لخوا د فوځونو ویستلو یانه ویستلو حکم نه وُ شوے. د دې نه پس دا فیصله وشوه چې فوځونه به په خپل ځای وی. او د هند د حکومت د حکم په رڼا کښې د دیر او سوات پولیټیکل ایجنسی جوړه شوه او میجر ډینی ئې پولیټیکل ایجنټ مقرر کړے شو.

د سوات په علاقه کښې چې مونږ د کوم مخالفت سره مخامخ وو د هغې وجه د مذهبی طبقو ناوړه اثر وُ. څو کله چې زمونږ فوځونه په دیر او جندول کښې وو، نو د هیڅ قسمه منظمې نښتې نه وې شوې، سره د دې چې کله چرې د غلته زمونږ خلاف لږ کار هم شوے وے نو په دې کښې شک نشته چې د باجوړ قبیلې او اتمانخېل

او شائد مهمند هم په عمومي توګه راپاڅېدلي وے.

هدې ملا ترخپله وسع کوشش کولو چې دا قبيلې راپاڅېدو ته ولمسوي. مانکي ملا اګرچې زموږ فعال دښمن نهٔ وُ، خو زموږ په طرف هم قطعاً نهٔ وُ، او امير او د هغهٔ افسرانو زموږ خلاف کارکولو. چې دې تولو څېزونو ته سرپے ګورې نو دا ورته څهٔ بل شانته (فوق العاده) ښکاري، چې بيا هم زموږ خلاف څهٔ خاص ګړبړ ونهٔ شو. او ددې وجه شايد داوه، چې خلک په دې نهٔ وو پوهه، چې د دې علاقې سره به زموږ تړون تر کومې پورې وی د دې مهم پواهم اړخ داوُ، چې په دې دوران کښې موږ په رومبی ځل د باجوړ او دير د قبيلو او اتمانخېلو سره نېغ په نېغه په تماس کښې راغلو.

ملسلانه ۱۸۹٦ :-

په تېر سېتمبر کښې د فوځونو د وتلو نه روسته د چترال د لارې په قبيلو يا په علاقه کښې چرته بل ځائے هيڅ څهٔ بدامني رانغله. يو څو ځانګړې جنوني واقعات وشول چې د خان د سپاهو په غرض د دير د ونې لېوې خلاف منځ ته راغلي وو، د چترال دا لېټيا قاعده د وُل تلو راتللو، او صرف په لوارګه د زياتې واورې له کبله د لږ وخت د پاره بند شوے وُ. د دير خان څهٔ خو په دې چې خپلې زړې بدلې واخلی او څهٔ په دې چې په لېوې د حملې په جواب کښې انتقامی کارروائي وکړې پنجبندول حمله وکړله او قبضه ئې کړه، خو زموږ په

مشوره لې عمل وکړو او د جندول خانان ئې په ځای کړل ، د
ھغۀ د حملې يو ستر اثر دا وشو چې جندولو ته بېدا وښودله
چې کۀ څرې ھغوئ اړے کړے جوړوی نو ځېله ھم روغ نۀ
شي پاتې کېدلے. د کوهو قبيلو سره چې مونږ په تماس کښې
راغلي وو، د ھغوئ سره د تعلق په لړ کښې يو لوئ مشکل دا
فيصله کول وو .چې د چترال په لاره د امن د ساتلو په خاطر
په ترکومه حده مداخلت کول ضروري دی ، چې امن ھم
وساتلے شي او د قبيلو د کورنو معاملو څخه د عدم مداخلت
پالیسی موهم متأثره نۀ شي . زمونږ څه داوه ، چې د خلکو
توجه د خانه وا ړوو ، او د ھغوئ ذهنونه په کرکرونده ، کوهيانو
کنستلو او د ځمکې په اوی ( آبې کولو ) کښې بوخت وساتو ، افسرانو
په کوز سوات او سمرانبزه کښې په ازاد مټ کرځېدل ، او خلکو
ورته درناوے ورکاوه . په چکدره کښې یو سول ډسپنسری
کار شروع کړو او ډېره کاميابي ئې حاصله کړله ، مقامی خلک ورته
ډېر په مينه راتلل . په مئ کښې د چترال د جرنمند فوځيانو د
بدلې د پاره د ډېر په لاره انتظام وشو چې له هره نظره کامياب
وُ ، کوم فوځيان چې چترال ته تلل ھغوئ د مئ په اوؤم تاريخ
د چکدرې نه روان شول . او کوم چې راتلل ھغوئ په يوولسم
تاريخ راورسېدل . د ځينې ورانکارو د پاره دا ډېره ښۀ موقع
وه ، چې زمونږ نه د کرکې د اظهار د پاره قدمونه پورته کړی
خو چې څرک ئې ھم د حملې په نيت راوراېدې شول ، د قبيلو د ھغه پيکهونو

له خوا په شاه وتنبولے شول، کوم چې د کیمپونو او د سړک د حفاظت د پاره مقرر شوی وو. د خان د راج لاندې د دیر قبیلو او تر یوحده پورې جندولیانو هم د سړک په ساتنه او د سازو سامان را رسولو په لړکښې زمونږ سره پوره مرسته وکړله د ځینې کسانو له خوا په انفرادی ډول د لوټ او یلغرکې د اظهار په توګه د حملې څه زمونږ په نظر کښې وه، خو د دې نه علاوه بله لویه خطره داوه چې چرته د اسمار د طرفه کږ وسله وال کسان د مذهبی تعصب یا د افغانی افسرانو په لمسون او یا د خان د بدنامۍ د پاره حمله ونه کړي. خو د هغه انتظام په برکت کوم چې قبیلو د سړک د ساتنې د پاره کړے وُ د داسې هیڅ څه ناوړه پېښه ونشوله.

د تلوګه او بر سوات د قبیلو او اتمانخیلو سره زمونږ تعلق په دوامدار ډول د تسلی ور (قناعت بخش) پاتې شو. مونږ چې کله په رومبی ځل سوات ته داخل شو نو میانګلانو په دې غرض زمونږ سره د خبرو اترو کوښښ وکړ، چې مونږ ئې د بر سوات د مشرانو په حیث په نظر کښې ونیسو، خو دې رابطې ئې هغه نتیجې ورنه کړلې کومې چې دوئ غوښتلې، مخوکې په سوات کښې د مانکی ملا د پراخه اثر په وجه د هغه سره قصد (حسد) لرلو. نو ځکه ئې یوځل بیا هم زمونږ سره د تعلق پیدا کولو څه وکړله، خو نتیجه ئې بیا هم هغه زړه وه. سره د دې چې د دیر خان د چترال ریلیف په معامله کښې

زمونږ د پاره د هر د کار سرې ثابت شوې وُ، خو بیا هم د
تېرو څو میاشتو واقعاتو دا حقیقت په ډاګه کړ، چې د هغهٔ د
ذاتي کردار د کمزورئ له کبله به هغه تل زمونږ د پاره د تشویش
سرچینه وي.

د باندئ سردار خان څوک چې د عمرا خان ملګرې وُ، او هغه
ئې بروله ته راوستې وُ، د دېر د خان په بېرته راتللو وتښتېدهٔ
خو له هغه موده پس ئې د خان سره روغه وکړله، او خپل ځوئ
ته ئې د خان لور کوژده کړله. خان د پښتونولئ هیڅ خیال
ونهٔ ساتهٔ، او د دې رشتې نه ئې انکار وکړ، او د خپلې لور
واده ئې د میاں رحیم شاه سره وکړ، څوک چې د کاکا صاحب
مخورینو اولاد وُ، او د نوښار خواته په کاکا زیارت کښې اوسېدهٔ
سردار خان په دې مجبوره کړې شو، چې د جون په میاشت کښې
باندئ پرېږدي سره له دې چې د پولیټیکل افسر د همدردئ د
احستو د پاره هغهٔ د برې هلې ځلې وکړې خو لا تر اوسه پورې
جلا وطن دې او د کوز سوات په جولاګرام نومي کلي کښې
اوسېږي.

عمرا خان د حج د پاره درخواست وکړ، او د پېرنګي په
علاقه کښې په حفاظت سره د تېرېدو اجازت ئې وغوښتلو، حکومت
د هغهٔ درخواست ومنلو، او زمونږ بخوا هغې بدخواه په هند
واورېدهٔ، او خپل خواهش ئې پوره کړ، هغهٔ د هغه انتظام
ستائینه هم وکړله، کوم چې پېرنګي افسرانو د هند د حاجیانو د پاره

د سمندري سفر په لړ کښې کړے وُ

دناوګۍ خان په دې نیت یو سلسله لاس وهنې شروع کړې چې د پښت لو باجوړ کې په سیمه حمله وکړي، خو خبره هغه وخت د کمر سر له راغله کله چې هغه د کال په آخره کښې په باجوړ حمله وکړله او د ډاګۍ په څو کلیو ئې قبضه وکړله، د هغهٔ دعوه داوه چې د پښت خان (په د غه وخت کښې سمیع الله خان وُ) زما مرئے (Vassal) دے او د هغهٔ (ناوګۍ خان) د دې تېرې مطلب صرف دا دے چې هغه (پښت خان) زما مشرې ومنی په اصل کښې د هغهٔ مقصد دا وُ، چې خپل قوت زیات کړي، او د حکومت نه هم هغه مقام واخلی کوم چې ئې د دیر خان ته ورکړے دے. د ډاګۍ مسئله د راروان کال ترنیمائی پورې هم غسې پاتې شوه، او بالاخره دا سیمه خپل اصلی مالکانو ته حواله شوه ترڅو چې د پښت دخان د تسلیمی تعلق دے، نو هغهٔ هم ورته پښه ټینګه کړله او د ناوګۍ دخان طمعه وشلېده، د باجوړ کښې ښچقله د هغهٔ خواهش په مامونډو، سالارزو او شموزو اتمانخېلو کښې د هغهٔ د بدنامی سبب وګرځېد، او هغوئ دا اعلان وکړ چې که چرې هغهٔ په پښت دوباره تېرے وکړ نو مونږ به د خار بجوانے خان د لارم خان چې په پېښبور کښې د حکومت په وظیفه او سبدهٔ بېرته راولو.

په سټمبر کښې د سوات په سیند کښې روښې ورو کے ماکویا جاله پرېښبودلے شوه، په د سمبر کښې د ناوګۍ لخوا په

په پښت حمله وشوه د پنجاب لفټننټ ګورنر سر ډینز فټز پټرک د مالاکنډ دوره وکړله، او په چکدره کښې ئې د دیر د خان سره خبرې اترې وکړلې، خان هغه ته په چکدره کښې د دیرې د سپېرې یا وړوکي روغتون د جوړولو د پاره د پنځه زره روپو پېشکش وکړ، دا غوښتنه په خوشحالۍ ومنلې شوه، عمارت جوړ شو او ضروري دوایانې او آلې پکښې واچول شوې خو دې کتهورې اداره د دې وخت د پاره کار ونه کړے شو، ځکه چې شپږ میاشتې پس د ۱۸۹۷ء په پاڅون کښې د پوره لوټلو نه وروسته دا عمارت وسېزل شو.

په دې کال کښې یوشه نا آرامونکي افواهګانې هم خورې شوې او د مذهبي طبقو له خوا په پرله پسې ډول د مذهبي جنون راپارولو ځنې هم وشوې، هره هفته به دا رپورټونه راتلل، چې عمرا خان بېرته جندول ته راروان دے، د کابل نه راوتلے دے، دومره دومره وسله ئې راغونډه کړېده او د کابل امیر په لاکونو (lacs) روپۍ امداد ورکړے دے، یوه ناوړه واقعه په مهمندو کښې داسې وشوه، چې د هغه ملکانو کورونه د ملیانو له خوا وسوزولے شول چا چې په شبقدر کښې د لفټننټ ګورنر په دربار کښې شرکت کړے وُ، په دې دربار کښې په سرکاري ډول دا اعلان شوے وُ چې د مهمندو ځنې نسبونه به په راتلونکي وخت کښې د امیر په ځای زمونږ د حکم لاندې وی.

**کال ۱۸۹۷ء :-**

د جنورۍ په میاشت کښې راپور ورننه راغلل چې هډې ملا لګیا دے کوښښ کوی چې مهمند، ماموند، د نلوګی قبیلې لوا تمانخیل راوپاروی، د ناوګی خان د خپل پوزیشن د مضبوطولو د پاره یو لازمی بنت داوکړ چې د قبیلو یوه پوره جرګه ئې د دې تجویز سره راولېږله، چې کوم چرې حکومت دوه تنخواه دار خانان داسې وساتی چې دیو زور د بل برابر وی، نو دا به د سرکار د پاره ډېره بنه وی، ځکه چې دیو خدمات به د بل د قابو کولو د پاره استعمالولے شی. د دې مطلب داؤ چې د ناوګی خان له دې د دیر د خان مساوی حیثیت ورکړل شی، د دې نه وړاندې د دیر خان دا تجویز وړاندې کړے ؤ، چې هغهٔ ته دې د ناوګی او پښت ترمنځ د شخړې د هوارولو ذمه داری ورکړې شی، د هغهٔ خیال دا ؤ چې په دې طریقه به هغه قبیلو ته دا وښیئ چې د سرکار په نظر کښې د هغهٔ رتبه د دې نورو دووُ نه زیاته لوړه ده، خو سرکار دا دواړه وړاندیزونه رد کړل.

په فرورۍ کښې د دیر خان میدان باندې خیل وړور شېر محمد خان چې په لیوی (levies) کښې صوبیدار مېجرؤ، ته حواله کړلے.

په مارچ کښې بیا بیا رپورټونه راغلل چې هډې مُلا د افغان سپه سالار غلام حیدر خان (چې داوخت په اسمار کښې ؤ) په مرسته قبیلې ورانکاریو ته لمسوی، د دې نه

علاوه نور هم حالات پېچلي په دې وو، چې د يوې خوا نه د عمراخان د راتلو افواهګانې خورې وې، او له بلې خوا نه د سرحد ونو کمېشن (کمېسيون) د هغه ځاى نه بيا کار شروع کړو نکے وُ، د چرته نه چې په ۱۸۹۵ء کښې مختل شوے وُ، او د افغان افسرانو له خوا دا خبرونه د پېره زور شور کښې خورېدل، چې مهمند به د پولې نه افغانستان خوا ته پاتې کېږى، په دې وخت کښې يواځې د باجوړ په قبيلو کښې کوټې نه وهل کېدلې، بلکې د دير خان له هم د کابل نه خط راغلے وُ، او دا غوښتنه ترې شوې وه، چې که چرې عومي پاڅون وشي نو د ير رېښتني مسلمان په حيث به هغه د چا طرف کوي

چترال تر دې وخته پورې د انتظامي چارو په حواله په ګلګت کښې د پېرنګى ايجنټ د حکم لاندې وُ، خو په دې مياشت کښې د دير او سوات پولېټيکل ايجنټ (پوليټيکل) ته حواله شو.

په اپريل کښې افغان خاصه دار چاچې متى ته بيا نبولې وه، د پېرنګى د حکومت په وينا بېرته لاړه.

په مئ کښې د چترال د چوکۍ کليزه بدلى بې له څه ناوړه پېښې سرته ورسېدله. تلونکى فوځونه په دويم تاريخ د چکدرې نه روان شو او راتلونکى په ۲۵ تاريخ راورسېدل، انتظام ورته هم هغسې شوے وُ، لکه څنګه چې تېر کال وُ، تر دې وخته پورې د چترال او دير ترمنځ د پولې شخړه راروانه وه. دا موجوده کربنه هم په د غه موقع وټاکلے شوه. د دير خان په دې خوشحاله نهٔ وُ، ځکه چې په د غه ارخ

دهغهٔ د پښتني غرونو منصوبه هم د دې وخت نه د تل د پاره ټکر ټکر نيمه خوا پاتې شوه .

په جون کښې د مياں ګلانو اود دير د خان ترمنځ بدخواهي ډېره تېزه شوله او د اخبره يقيني شوه ، چې په برسوات کښې به مياں ګلان د خان خلاف او په ضمني ډول زمونږ خلاف هم قبيلې راپاڅوي ، دا د ډېر وخت نه د خان ارمان وُ ، چې د اقبيلې دخپل اثر لاندې راولي ، تر دې وخته پورې مونږ د خان د دې فکر مرسته نهٔ کوله ، ځکه چې مونږ ته ترې څهٔ فائده نهٔ وه اود اامکان يکښې وُ ، چې په لانجه مو واړوي ، يعني کهٔ چرې دا قبيلې د اسې فکر وکړي ، چې پير ټکے غواړي ، چې خان مونږ ته په سرکښيوي نو مرو مرو به مزاحمت کوي ، خو بيا هم د اموجوده حالات د اسې وو ، چې د قبيلو لهٔ خوا په هغه صورت کښې د کړ بړ امکان موجود وُ ، چې خان د هغوي په علاقه کښې ړومبے خپل اثر نهٔ وے پيدا کړے ، چونکې په دې وخت کښې په سوات کښې د هغهٔ ډله کافي مضبوطه وه ، نو ځکه د اښهٔ موقع وه ، چې هغهٔ ته د بنې غاړې په قبيلو د لاس کتو اجازت ورکړے شي .

تر اوسه پورې د اتانخيلو اوډباجوړ د قبيلو سره زمونږ تعلق د تسلي وړ وُ ، خو په هغوې کښې ډېر په پراخه ډول د ناراضۍ احساس هم موجود وُ ، د اخبره هرچاته معلومه وه چې د کابل لهٔ خوا زمونږ خلاف سازش روان دے ، او د اچې د هډې ملا اوپه دير کښې پلم بابا خوک چې زمونږ منلي شوي

دشمنان وو، لکیا دی پروپیګنډې خوروی او د قبیلو ذهنونه زمونږ خلاف ډکری، او په هره طریقه چې وی زمونږ په لاره کښې خنډونه اچوی.

د جولائی په پیل کښې د بر سوات پوره جرګه راغلـه په دې کښې د توجه وړ خبره داوه، چې دا خلک په کوز سوات زمونږ د قبضې نه وروسته په اول ځل زمونږ سره د لیدلو د پاره راغلی وو، د هغوئ د خبرو انداز ډیر دوستانه ؤ، او هغوئ ټولو دا خواهش ظاهر کړ چې هغوئ په خپله سیمه داسې امن غواړي، لکه څنګه چې په هغه علاقو کښې دے کومې چې زمونږ سره په زیاته اندازه نیغ په نیغه تماس لری. دا ثابته شوه چې د میاں ګلانو قوت محض تګی (ګپله) وه. د دیرخان د سینه د بنی غاړې په قبیلو خپل ځان منلے ؤ، او هغوئ په ظاهره دهغه د دې لوظ نه مطمئن وو، چې هغه به د عائداتو دغونډولو د پاره خپل محاصل نه رالیږی، او دا کار به د هغوئ خپلو مشرانو ته حواله کوی. په دې وخت کښې د دیرخان ته د نواب خطاب ورکړے شو، او هغه په دې خبرو بې کچه خوشحاله شو.

دا ؤ د جولائی په پیل کښې ظاهري صورت حال لا کله نه چې د دې علاقې سره زمونږ تړون شروع شوے ؤ نو یونیم وار به چرته داسې شوې وی، چې خلک دې د دمې

موجوده وخت نه زیات مطمئن وی او د امن او خاموشی امید دې زیات روښانه وی، هغه واقعات چې په دې وخت کښې ویښول، د هغه مذهبی اشتعال څرګند وینه کوی، کوم چې په ناڅاپي ډول په علاقه کښې د وحشي مذهبي جنونیت او ر لګولے شي .

هغه ناارامي چې په د غه علاقه کښې څه موده وړاندې موجوده وه، په ظاهره په عارضی ډول د منځه تللې وه، د دې ناارامئ پخپله چې مونږ پته ولګوله، نو معلومه شوه، چې د دې اصل وجه مذهبی مشران لکه هډې ملا، میا کلان او دامې نور وو، د دوی منصوبه داوه، چې د دې کال د چترال ریلیف په موقع د پولې د هغه غاړې قبیلې په یو وخت په شریکه را پاڅوي . دا چې ترکومه حده پکښې د کابل له خوا لمسه شوې وه شاید چرې هم معلومه نه شی، البته دا خبره یقیني ده چې د افغان سپه سالار او نورو افغانی افسرانو مرسته ورته حاصله وه . د امیر له خوا چاپ شوے کتاب « ترغیب الجهاد » به دوی خلکو ته د ثبوت په ډول ښودلو، چې امیر د جهاد خواهش لری او خوښ چې هم د جهاد د پاره راپاڅی هغه به ئې تینګه مرسته کوی .

د هډې ملا او نورو مشرانو په منځ کښې دا پریکړه په وخت وشه شوه، چې جهاد به پروسیے د کوم ځای نه او په څه طریقه شروع کوی نو ځکه ترې د چترال ریلیف موقع واوړیده

او دوئ خپل فعالیتونه (سرکرمحد) د یوې مناسبې موقعې د تلاش په طمع وځنډول.

داؤ د ۱۹۷۱ء د جولائی په پیل کښې د دې علاقې صورتحال، په دې رپورټ کښې د راروانو ځو میاشتو د واقعاتو پوره تفصیل نه ذکر کوو، ځکه چې د دې خاص وخت پخقله لیکلی شوی کتابونو او رپورټونو کښې د دې واقعاتو بشپړ معلومات خوندی شوی دی او دلته که د خاص نقطو ذکر وکړو نو پوره به وی.

په اتلسم جولائی مالاکنډ ته دا راپورټونه (راپورټ) راغلل، چې یو نا اشنا فقیر چې اوس اوس په لنډاکی کښې دیره شوی دے، د خلکو توجه ورو ورو ځان خواته راګرځوی. هغه دعویٰ کوی چې د هغه د ملاتړ د پاره د بلې دنیا نه داسې یو فوځ راغلے دے چې په نظر نه راځی، د دې نه علاوه داهم وائی چې کرچرې هغه وغواړی نو ځان غیبی مرئي (په نظر نه راتلونکے) ګرځولے شی، او بلا خلک په یو ځو دانو وریجو مړولے شی، هغه د کافرو خلاف دجهاد تبلیغ کوی او دا وعده وکوی چې د دښمن ګولۍ به په تاسو نه لګی او په اوبو کښې به لوبږی، هغه وائی چې زه چا رالیږلے یم، خو دا نه وائی چې هغه څوک دے د دې سره سره داهم وائی چې خلور نور کسان د هغه د ملګرتیا د پاره راروان دی. د تحقیق نه پته ولګېدله، چې د دې فقیر

نوم سعد الله دے او د بونیر او سپد ونکے دے، په هند کښې په اجمیر او په نورو ځایونو کښې د یو اوږد وخت د تیرولو نه پس بونیر ته بیرته راغلے وُ، هلته یې د جهاد د پاره د خلکو د راپاڅولو هڅه کړې وه خو کامیاب شوے نه وُ.

د جولائي د پنځه ویشتم[25] تاریخ پورې د علاقې مشرانو ته لوړے سنکاریده، چا به ورته ملاصستان ویئیل او چا سرتور فقیر. د تامې د خاغنلو نه چې په دې حقله معلومات وشو. نو مغوئ په پنځه ویشتمه نیټه میجر دینی ته ووې، چې د ده کارونو ته دومره اهمیت ورکول نه دی پکار، میان کلانو هم ووې، چې ځان وربانډې نا ښکاره کړه، موږ به پسې نوکر ولیږو، او اوچت به یې کړو.

په دغه وخت میجر دینی اسسټنټ پولیټیکل ایجنټ لفټیننټ منچین چکدرې ته په دې غرض ولیږه چې د واقعاتو جاج واخلي، او د علاقې صورتحال رپورټ کړي، هغه د مالاکنډ د کمانډر کرنل میکلی جان (Meikle john) سره دا فیصله هم وکړله چې سبا سحر وختی به یو شمیر فوځیان امانډرې ته ولیږي، د دې فیصلې سره سم حکم وشو چې فوځیان ځان تیار کړي، او د شپې درې بجې د مالاکنډ نه روان شي، تر دې وخته پورې د هیچا په ذهن کښې دا خیال نه وُ، چې کښې واقعی په مالاکنډ حمله کېدونکی ده.

په شپږ ویشتم[26] تاریخ سرتور فقیر د لنډاکی نه مخ په ښکته

را روان شو د هغهٔ سره فقط یو څو هلکان وو، چې د هغوی د جملې نه د یو په حقله هغهٔ ویل چې داد دهلی حکمران دے دوئ هغهٔ د ځان نه مخکښې کړل، خلک د هغهٔ زړه ورتیا ته حیران شول. او د خپلو وهمي ذهنونو له کبله د هغهٔ د روحاني طاقت نه ویریدل نو ځکه چې څومره په وړاندې تلو، خلک ورسره ملګري کیدل، الهونډ او نورو کلیو هم د غسې وکړل، د وی وړو وړو مخ په وړاندې تلل، شمیر یې زیاتیدلو، او ماښام مالاکنډ ته ورسیدل.

د لیوې یو جمعه دار د شپې په ۹-۳۰ بجې په تړاټ راغے او میجر دینی ته یې داخبر ورکړه، چې د قبیلو خلک مالاکنډ ته را رسیدونکی دی. بیګل وغږیده، او فوځیان په مشکله خپلو ټوپکو ته رسیدلی وو، چې حمله شروع شوه، د دې حملې د تاریخ نه داپته لګی چې په دې موقع کرنل مکری (Mcrae) او د ۲۵، پنځه ویشتم سکهه رجمنټ میجر ټیلر ډیر اهم رول اداء کړے وُ، او هغه داسې چې صرف د یو څو کسانو په زور یې د بدهست روډ د لارې مالاکنډ کوتل ته د حمله کوونکو مخه نیولې وه. او په مالاکنډ یې د هغوی د قبضې مخې نیولې کړې وې، په دې وجهٔ چې په مالاکنډ کوم جنګ شروع شوے وُ، هغه تر پورې اګست پورې جاری وُ، په ۲۶ شپږ ویشتم تاریخ په چکدره هم حمله شوې وه او تر دویم اګست یعني د حمله کوونکو د ماتې خوړلو تر نیټې پورې سخت جنګ روان وُ.

په اوویشتم[۲۷] تاریخ کاټهز راورسېدهٔ او هم په دې ورځ دا ضروري شوه چې د شمالي مالاکنډ د کیمپ نه لاس واخلو، ځکه چې مونږ سره دومره فوځ نهٔ وُ، چې کوتل او د شمالي مالاکنډ پوزیشن دواړه موساتلی وے. تر اتهٔ ویشتم[۲۸] تاریخ پورې په هند کښې د فوځونو د حرکت حکم شوے وُ، او ځینې خرپه دغه وخت کښې هم په لارې وو، په لوړې تښتې د د ښمنانو شمېر په مشکله د زرونه زیات وُ، خو دوی په تېزۍ سره پکښې زیاتوالے راغے او په مالاکنډ کښې د دولس زرونه وا اوړېدل، په داسې حال کښې چې د بره طرفه اتهٔ زره کسانو په چکدره یرغل وکړ، په ۲۹ نهه ویشتم تاریخ میاں ګلان د بره سواتو د لښکر سره او هم دا تمانخېلو یو لښکر منظرته راغے. رښتیا خبره دا ده چې فقیر ځان یو زړه سرے ثابت کړ او په یو لاس سخت زخمي شو، یو ملګرے ئې په خوا کښې مړ شو، د چا په حقله چې وئیلې شو چې د هند ملا دے. په دېرشم[۳۰] تاریخ پنځهٔ دېرشم سیکهاو اتهٔ دېرشم[۳۸] دوګرو ځنتونه راورسېدل، هم په دې ورځ د مالاکنډ او درګئ ترمنځ د ټیلیفون تار پرې کړل شو، او د لېوې څوکۍ وسوځولے شوې، په یودېرشم[۳۱] تاریخ مونږ ته نور فوځونه هم راورسېدل او د دښمن طرفته هم د بونېروالو اضافه وشوه. په رومبی اګست یوه قوي رساله راوستے شوه، خو دښمن ته دیوځهٔ نقصان رسولو نه وروسته په دې مجبوره شوه، چې بېرته لاړه شي. تر دې وخته پورې د بیا بیا یو رنګه ناکامیابه

هڅوله کېده د قبيلو وګړي ورو ورو زړه ماتي کېدل ، په دويم اګست يو شمېر فوځيان بېرته راووتل او په امانډره کښي ئې د دښمن ته ماتې ورکړله ، همدا رنګه د چکدرې چوڼۍ ، کوم چي د ډېر زيات فشار لاندې وه ، ارامه کړے شوه ، د بټخېلې تړل کلي ته ئې اور ورته کړ ، چي په دريم تاريخ د معلوماتو (سروې) د پاره کسان ووتل ، نو پته ولګېدله چي د چکدرې غونډه په پوره ډول خوره شوې وه ، او په کوز سوات کښي هم څه د اهميت وړ غونډه نه وه پاتې . د دې اړې ګړې د اونۍ (هفتې) په دوران کښي په چکدره او سراى کښي لېوې د يوځو نه بغير نورې ټولې څوګه پريښې وې ، او ځني يکښي د دښمن سره ملګرې شوې وې خو د دې نه اخوا په ډېر لاندې باندې ليوې متزلزل شوې وُ ، خو څوکه ئې نه وې پريښې ، او د رباط عبدالله خان په دې خطرناک موقعه دا اهم رول وکړ ، چي د لېوې نه ئې هغه کار واخست کوم چي د هغوئ ذمه دارى جوړه‌ېدله .

اوس دا سې خبرونه راتلل شروع شول ، چي د دې غير متوقع او بې جوازه پاڅون په اسبابو ئې رڼا اچوله ، يو اطلاع دا راغله ، چي دا سمارنه سپه‌سالار د جولائي په شلمه نېټه فقير ته د جهاد شروع کولو د پاره خط ليکلے وُ ، او د کمک وعده ئې ورسره کړې وه ، فقير د ډېر نواب ته ليک استولے وُ ، چي هغه د دې په نتيجه‌کښي په‌دوه زړه ‌کښې شوے وُ . او دا فيصله ئې نه شوه کولے چي د چا په طرف شي . نېک مرغي (خوش قسمتي) دا وه چي

د هغهٔ د پاره او د چترال سره زمونږ د رابطې د لائن د پاره ـ داسې حالات جوړ شو چې هغه زمونږ سره ملګرے شو، خو بیا هم ملګرتیا ئې د زړهٔ دا خلاصه نهٔ وه، معلومات د برېښهٔ قلاره او ټوټه ټوټه راټولېدل، خو دا حقیقت ئې ثابت کړ، چې دا پاڅون پهٔ کُلهم د وُل یوه مذهبی معامله وه، چې منصوبه ئې د کابل او هند له خوا د وړاندې نه جوړه شوې وه. مقصد ئې دا وُ چې په پوله پرتې قبیلې زمونږ خلاف راپاڅړی لمسوونکو د پېښور په سرحد، بونېر، باجوړ، سوات او د اپرېدو او مهمندو په علاقه کښې د خلکو د جذباتو د راپارولو د پاره د بېر زیار ویستلے وُ. فقیر چې تر اوسه لېونے بلل کېدهٔ د بېر هوښیار سړے وُ. او د خېل کار پهٔ پیل کښې ورته سنهٔ پوره چنده ورکړے شوې وه. دا خبره هم پهٔ ډاګه شوه چې د پاڅون منصوبه داسې وه چې پهٔ ټول سرحد (پوله) به یو ځائې شروع کېږی، خو فقیر تُندی وکړله.

دې لاندې قبیلو د ملاکنډ او چکدرې په حمله کښې برخه اخستې وه، سم او بر رانیزیه، سلارزی، اشورزی، بونېروال ټول بر سوات، ادینزیه، د تالاش او سپدونکی، دوسه خېل، د باجوړ بیلا بیلې لښکرې، د خال اخوندزادګان، اصیل او شموزی اتمانخېل او د پینده خېل ملېزو یوه وړه ډله. کهٔ چرې د بېر نواب پهٔ وخت مدو ته را رسېدلے وے، نو د باجوړ یو لوئې شمېر به ئې پهٔ لاره کښې منع کړے وے، د سمرانېزیه خلکو

په انفرادي ډول په دې پاڅون کښې برخه اخستې وه، خو د قبيلې په حيث يې رويه بده نه وه، او ملکانو خپل خلک په درګه کښې د حملې کولو نه منع کړي وو، او مونږ يې د لويې مصيبت نه بچ کړي وو، مردان ته د ټيليګراف تار بيا بيا پرې کړے شوے وُ، البته دا کار د بې ونډه ورانکارو له خوا کېده.

د دې اندازې د پاره چې زمونږ د سرحد دننه او بهر څومره خلک د دې پاڅون د پاره تيار کړے شوي وو، بايد ذکر شي چې د مالاکنډ په حمله کښې زمونږ د پېښور د ضلعې نه کم نه کم دوه زره کسانو برخه اخستې وه.

په ۸ اتم تاريخ په شبقدر د مهمندو د حملې خبر راغے او د دې قسمه بلې واقعې د مخنيوي د پاره دا ضروري شوه، چې بره سوات ته فوځ وليږلے شي. په دې يارلسم ۱۳ تاريخ نواب د سيند د بنې غاړې د قبيلو د جرګې سره چکدرې ته حاضر شو په هغوئ باندې په دې معامله کښې د برخې اخستلو په تور کښې ۲۰۰۰ مثل زره روپۍ جرمانه ولګېده. او نواب ته حکم وشو چې يخپله دا جرمانه راټوله کړي. هغوئ ته وويلې شو، چې هغه به په بنې غاړه په داسې ډول مخ په بره ځي، چې په چپه غاړه د تلونکو فوځيانو سره لږ يا ډېر په متوازي حالت کښې وي، او ځينې خاص ځايونه يې دوه درې ورځو د پاره هم ورته په کوټه کړل، په جرګه يې دا ډاګه وکړله، چې تر څو پورې چې د چپې غاړې فوځ بېرته تالاش ته رسي بايد تاسو جرمانه نواب ته رسولې وي، او که چرې داسې مو ونکړل

نو بنی غاړې ته به د سزا ورکولو د پاره په هغوئ پسې مخ په بره فوځ استولے شی.

په شپاړسم[١٦] تاریخ زمونږ یو بریګیډ فوځ تاڼې ته ورسېد په اوولسم[١٧] تاریخ چې ئې د دغه ځای نه حرکت کولو، نو پته ولګېده چې د دښمن د لنډاکی لار نیولې ده، په دې لښکر کښې د میان ګلانو په مشرۍ کښې اباخېل او بابوزي د سلارزو او چغرزو، بونېروالو سره یو ځای راوتلی وو، په دې مزاحمت باندې په اسانه د قابو موندلو نه روسته فوځونه کوټې ته لاړل، په سباله غالیګی ته او په بل سباله یعنې نورلسم[١٩] تاریخ ته مینګورې ته ورسېده دلته ئې د توپکو او پیسو په شکل کښې د جرمانې راټولولو د پاره څلور ورځې توقف (Halt) وکړ، او د مینګورې، چارباغ او ـ ګلی باغ په صورت حال د ځان پوهولو د پاره ئې سروې وکړه په څلروېشتم[٢٤] تاریخ فوځ بېرته بریکوټ ته راغے او په پنځه وېشتم[٢٥] تاریخ د کړاکړ د درې کمه چې بونېر ته ځي دجاج اخستلو د پاره سرې ولېږل شو، په شپږوېشتم[٢٦] تاریخ فوځ تاڼې ته راغے او د بنې غاړې په قبیلو لګولے شوې جرمانه ئې د نواب نه حصول کړله دا حرکت چې د کوم مقصد د پاره شوے وُ، هغه د ېر په کامیابۍ سره حاصل شو، او دا حقیقت په ډاګه شو، چې په خلکو کښې د میان ګلانو هیڅ اثر نشته، او که ؤ ئ شته هم نو ډېر لږ دے.

په دېرشم اګست یو تولګے فوځ اوچ ته په دې غرض

ولېږلے شو، چې ادينزو ته سزا ورکړي، هغوئ ته حکم ورکړے شو چې د وسلې نه علاوه پنځۀ زره روپۍ جرمانه اداء کړي، هم په دې ورځ د فوځ يو بل ټولګے اتمانخېلو ته د سزا ورکولو په نيت د کوز سوات د جولګرام په لور واستولے شو، ولې په بلجوړ کښې د کړېږ د امکان له کبله په دريم ستمبر بېرته را وغونښتل شو، د ناوګي خان تر دې وخته پورې د هرقسمه خدمت ته ډېر په شوق کښې وُ، خو د باجوړ د قبيلو رويه شکمنه وه، نو ځکه په څلورم ستمبر هغۀ ته خط ولېږلے شو، او دا وضاحت ورته وشو، چې د دې د پاره چې مهمندو ته په پوره ډول سزا ورکړے شي، زمونږ د پاره دا ضروري ده، چې فوځونه په باجوړ او ناوګي واړوو. په عين وخت کښې د احتياطي عمل په ډول د پنجکوړې د پل د نيولو په نيت سد و ته فوځ واستولے شو، په پنځم ستمبر خبر راغے، چې د ناوګي د خان په مشرۍ کښې به د باجوړ ټولې قبيلې د مهمندو علاقې ته زمونږ د فوځونو د تېرېدلو مخالفت کوي.

په شپږم تاريخ شموزي اتمانخېلو خبر راولېږه چې هغوئ د حکومت شرطونو منلو ته تيار دی، او هرڅۀ جرم چې ورباندې لګوی هغه هم منی. په اوو‌م تاريخ فوځونه سرلے ته په اتم تاريخ د پنجکوړې اخوا کوټکی ته او په نهم تاريخ کوسم ته لاړل، دوئ چې تر دغه ځايه ورسېدل، نو د ناوګي د خان زمونږ سره د زور ازمائيلو جذبه سړه شوه، او هغه سره د خپل

مشرځوي ، وروروا و د جار او ځار د ترکلاهنو خانانو راغے ، او خپل خدمات ئې پيش کړل ، خبره دا سې جوړه شوه ، چې فوځونه کله د جار نه تېرېږ ی ، نو ولايت خان به دا خيال ساتي چې چرته څوک ورته تکليف ورنکړي ، سردار خان به د ځار په علاقه او صفدرخان به د مهمندو تر پولې پورې دا ذمه واري سرته رسوي دګوسم نه د تور او باړوې چونيو ته کسان لاړل ، او ميرحسن خان او ميرافضل خان ئې بنديان کړل ـ د منډه عبدالمجيد خان په دې مجبور شو چې د خپلو نهو کوڼځ توپکونو نه لاس ووينځي .

په يوولسم تاريخ فوځونه سکړې ته روان شول ، او سبا ته د مخې برګيډ ځار ته ورسېد او په دولسم تاريخ ورپسې دويم برګيډ راغے . په څوارلسم [۱۴] تاريخ دويم برګيډ په مرخنۍ کښې پړاو وکړ (مرخنۍ د ماموندو د سيمې په څنډه کښې يو کلے دے) په دغه شپه ماموندو په هغوئ حمله وکړه . په پنځه لسم [۱۵] تاريخ دې قبيلې ته د سزا ورکولو په هڅه کښې دا اتات کلي بد مرغه واقعه وشوه ، چې د دې په نتيجه کښې دا ضروري شوه ، چې د دې قبيلې خلاف نور هم سخت قدمونه پورته کړے شي ، دا يو داسې زاره چاودے کارؤ ، چې تسلي ورباندې نهٔ کېدله ، لوهغه -- داسې چې هغوی ته د سزا ورکولو د پاره زموږ سره ايکې يوه لاره وه او هغه دا چې سحر وختي فوځونه ورشي او يو ياځو کلي وسېزي يعني بايد هرمابنام کيمپ ته په داسې حال کښې راستانهٔ

شي چې دښمن ورپسې وي، د ماموند و شپږ ویشت کلي وسېزلې ـ
شول، او د دانو او څارو و د ګیاه په مشکل کښې نقصان په دې سبېږه
وُ، د دې قبیلې سره د معاملې هوارولو په لړ کښې د څُنډه وجه داوه
چې د افغانستان سرحد ورته نزدې وُ او د ښمن ته د دغه اړخ نه
د وسلې او سرو په مشکل کښې په مسلسل ډول کمک راتلو.

په دې وخت کښې سره د دې چې د فوځ د پاره په سوات کښې
څه خاص کار نه وُ، دا ځای د دلچسپۍ ور وُ. په شپږویشتم[۲۶]
تاریخ دوه کشران میان ګلان راغلل، او هدارنګه د بر سوات جرګه
هم حاضره شوه، د جرمانې راغونډولو کار هم په صحیح ډول
روان وُ. نواب لوېه سردردي جوړه کړې وه، ځکه چې یو خو
هغه په فطري توګه د مسلسل هلوځلو جوګه نه وُ، او بل دا
چې کوم کسان ترې چاپېره وُو هغوی ډېرې ضروري مشورې
ورکولې.

تر یوولسم[۱۱] اکتوبر پورې د ډېرو مشکلاتو نه پس ماموند
زمونږ شرطونو ته غاړه کېښوده او په دولسم[۱۲] تاریخ فوځ جار
ته کوچ وکړ، په سباله د باېوکړې د سیمې متې شاه ته په دې
نیت زمونږ فوځ روان شو، چې سلارزو ته سزا ورکړي، ځکه
چې هغوې د ولډي د علاقې په جنګ کښې زمونږ خلاف برخه
اخستې وه. د غلته فوځونو تر ښلم تاریخ پورې توقف وکړو
او زمونږ شرطونه و منلې شو، فوځونه بیا په دې خیال
جار ته واپس راغلل چې که ضروري وي نو چې شمونږ

اتمانخېل وربېروی ، د هغوئ جرګه راغله او دا خبره ئې وکړه چې د مالاکنډ د جګړې نه روسته هغوئ د سرکار خلاف د هيڅ قسمه قدم نهٔ دے پورته کړے ، او د دې برعکس ئې د پنجکوړې او وټلې تر منځ د رابطې د لائن په ساتنه کښې لاس کړے دے ، د دوئ دا خبره رښتيا وه ، او په هغوئ چې د ټوپکو په شکل کښې کومه جرمانه اينبودل شوې وه ، د هغې يوه برخه وبخښلې شوه . تر (۲۱) يوويشتم تاريخ پورې هغوئ پاتې جرمانه داخله کړله او فوځونه بېرته پنجکوړې ته روان شول . مرکز او دويم بريګيډ په دروېشتم تاريخ سرائے ته راورسيد ، او لمړی بريګيډ د سيند په پل پاندې توقف وکړو (ايسار شو) .

د مياشتې په آخره کښې دوه مشران ميان ګلان د بر سوات د شېر سوه ملکانو سره چکدرې ته راغلل ، او په يشېړ دوئ تسليم شول ، او د حکومت د خدمت د پاره ئې خپل خدمات پېش کړل ، او د خپلې وفادارۍ د ښکلې د پاره ئې دا پېشکش هم وکړو ، چې هغوئ به بونېروال دې ته مجبور کړي ، چې زمونږ شرطونو ته غاړه کښېږدی ، او په دې دوئ به حکومت د مهم د خرچ او ستونځو نه بچ کړي . په نومبر کښې ميان ګلان د دې د پاره بونېر ته لاړل ، چې وګوري چې د حکومت شرطونو ته د بونېر د خلکو د راضی کولو د پاره څومره څه کولے شي .

په دې وخت کښې د جندول کورنۍ (داخلي) جګړې د ترجه ور وکرځېدله . د باړوې خان سيد احمد خان او د منډه ــ عبدالمجيد خان په خپلو کښې نښتي وو او عبدالمجيد خان پکښې په ګټه کښې وُ ، نواب د سيد احمد خان د مرستې د پاره خپل لښکر ليږل غوښتل، او د ناوګۍ خان د عبد المجيد د کمک د پاره هم د غسې نيت کړے وُ ، ولې زمونږ د افسرانو په وينا هغوئ د واړو د څهٔ وخت د پاره د دې قسمه عمل ونهٔ کړو.

هغه فوځ چې د اتمانخېلو خلاف په ستمبر کښې روان شوے وُ ، خو هغه د پر ژر بېرته راغوښتے شوے وُ ـ يو ځل بيا د سمراښزئه په ګلي عثمانخېلو ګرهي کښې راغونډ کړے شو، او توپخانه خوا ته روان شو، ولې جګړه ونهٔ شوه ، ځکه چې اتمانخېلو زمونږ شرطونه ومنل ، چې په هغې کښې د وسلې او پيسو د جرمانې نه علاوه دا هم شامله وه چې هغوئ به په خپله علاقه کښې زمونږ د سروې په لړ کښې زمونږ سره مرسته کوي. دا فوځ د د سمبر د ختمېدلو نه وړاندې بېرته راغے.

۱۸۹۸ء :ــ

جنورې د نواب د بيلا بيلو د رخوا ستونزو سره شروع شوه په اصل کښې هغهٔ د جندول په معاملو کښې ځان ورکډول غوښتل او بهانه يې دا کوله چې مدعا يې چترال ته زمونږ د لارې صحيح ساتنه ده ، په دې لړ کښې ورته زمونږ له خوا هيڅ داد ورنکړے شو . ميان ګلانو يو ځل بيا ثابته کړله چې

داقبیلې د هغوئ هیڅ اثر نهٔ قبلوی ، لو بونېروالو خو زمونږ د شرطونو بچټله داسې واضحه انکار وکړ، چې بې د زور نه بله لار پاتې نهٔ شوله ، د بونېر فیلډ فورس د سنګاوو نه په شپږم تاریخ د تنګۍ درې په لاره روان شو ، او دولس[۱۲] ورځې پس په نولسم[۱۹] تاریخ بېرته راورسېد . دوئ په بونېروالو خپله خبره ومنله ، او هیڅ څهٔ د ذکر وړ مزاحمت ورته ونهٔ شو . او په دې توګه د بونېر پرده اوچته شوه. دامېلې د مهم په نتیجه کښې د دې قبیلې په حقله داسې تأثر جوړ شوے وُ ـ چې کهٔ چرې هم په دوئ فوځونه ورځي نو دوئ دا توان لري ، چې ښهٔ ټینګ مزاحمت وکړي ، خو په دې لړ کښې مونږ یو ډېر اهم حقیقت د نظره غورځوو ، او هغه دا چې د دغه مهم مزاحمت په حقیقت کښې د سوات ، دیر او باجوړ د قبیلو د کمک په برکت شوے وُ .

په درویشتم تاریخ د مالاکنډ فیلډ فورس ونډر وېشلو لې شو ځکه چې د قبیلو په منځ کښې یو والے تالا ترغه شوی وُ . او د دې خبرې ثبوت دا دے ، چې هم د دې فورس د خپرېدو په ورځ په ټول سوات کښې د مختلفو ډلو ترمنځ سختې جګړې شروع شوې ، یو توکے ګرځنده فوځ په سوات کښې پرېښودلے شو .

په فرورۍ کښې څهٔ خاص واقعونهٔ شوه ، اګر چې په بونېر کښې په ازاد ستې د جهاد تبلیغ کېدلو ، او دا معلومه شوې وه ، چې د هند نه راغلی مشکوک کسان د دے علاقې ته ځي راځي .

د مارچ په میاشت کښې میان ګلانو دا خواهش ظاهر کړه ، چې ،

هغوئ د نواب سره داسې سمون جوړول غواړی لکه څنګه چې د تېر نسل GENERATION په وخت کښې موجود وُ ، يعنې دا چې په ديراوسوات کښې به ټول روحانی قدرت د هغوئ سره وی او دنيوی به د نواب په لاس کښې وی ، او شريکے عائدات به په خپلو کښې تقسيموی ، د دوی د دې خيال مرسته ونه شوه .

د اپرېل په مياشت د ناوګی خان په مټې کښې ځان ټينګ کړو ، خو ډېر زر د سلارزو او شموزو سره په جګړه کښې ونښتو ، نواب يو ځل بيا په جندول کښې د مداخلت خواهش ظاهر کړ . چترال ريليف په مئ کښې وشو . د مئ په دريم تاريخ شروع شو او راللونکی فوځونه په پنځه ويشتم [۲۵] تاريخ بېرته چکدرې ته راورسېدل . په سړک د هيڅ قسمه بده پېښه ونه شوه ، سره د دې چې فقير ته دا ډېره ښه زړهٔ پورې موقعه ښکاريدله ، او هڅه ئې کړې وه ، چې دير ته راشی او حمله وکړی . خو زری (—— (Messengers) ئې د قبيلې وګړو بېرته ستانه کړی وو . د عمرا خان يو خپل (رشته دار) ميراغلخان هم د باجوړ د اړخ نه مونږ ته د نقصان رسولو هڅه کړې وه خو د قبيلوی انتظام له کبله هغهٔ هم هيڅ ونهٔ کړے شول ، يو شے چې مونږ ترې مطمئن نهٔ وو هغه دا وُ چې د قبيلې وګړو نواب نهٔ خوښولو .

په جون کښې يو ځل بيا د سيد احمد خان او عمرا خان د خپلوانو ترمنځ جګړه ونښتله ، او يو ځل بيا نواب او د ناوګی خان د مداخلت خواهش په دې نيت څرګند کړ ، چې د مخالف فريق په نقصان ځان

ته د کتې هڅه وکړی، خو بیا هم څه لوی بحران پیدا نه شو.

په جولائی کښې یو ځل بیا د ناوګۍ د خان او سلازرو تر منځ شخړه پیدا شوه، ولې په دې پېره کښې د خان ځملې ته لاړله په پرله پسې د وُل خبرونه راتلل چې فقیر د یو بل جهاد لپاره متې رانغښتې دی، خو د سوات خلکو په خپله علاقه د تېرېدو اجازت ورنکړه، یوه اهمه مسئله چې د نواب او د ناوګۍ د خان په ذهنونو کښې د څه وخت نه پنجې سنجې کړې وې داوه چې په جنډول به څوک او څنګه قبضه کوي. د دوی لښکرې د څه وخت راسې تیارې ولاړې وې، د دوی خیال داؤ چې کوم یو هم په جنډول قبضه وکړه، نو د بل فریق د پاره به مستقله خطره جوړه شي.

په یوویشتم تاریخ خبره سرله راغله، او د دوی د لښکرو تر منځ سخته جګړه ونښتله، په دې جګړه کښې نواب یو څه په فائده کښې وُ، خو چې د حالاتو جاج ئې واخستو، نو پوهه شو چې که چرې جنګ اوږد شي، مات ئې یقیني کېږی، او له هغې وېرې ئې د حکومت نه د کمک خواست وکړه، خو سرکار ورته انکاری شو. ناوګۍ هم زموږ د مرستې غوښتنه وکړله، خو جواب ئې په نفی کښې ورکړے شو. دا ډېر خطرناک وخت وُ، ځکه چې د نواب د پوزیشن په استفاده د فقیر له خوا د سوات نه په دیر د حملې خطره وه، خبرې اترې روانې وې، که څه پوره ئې جوړه پدله، نو یو فریق هم دې ته جوړ نه وُ، چې فیصله په جنګ وکړی دواړو طرفونو موږ ته د خپلې دعوې د مرستې درخواستونه کول

دواړو فریقو زمونږ د روغې جوړې د هڅونه استفاده وکړله او په د یارلسم ۱۳ اگست یې خپلې لښکرې خورې کړې، د ستمبر ټوله میاشت معامله هم دغسې کرکیچنه پاتې شوه، او دواړو فریقو هغه دغه (ټال مټوله) کول. بالاخره د هغوې تر منځ دا ې فیصله وشوه، چې نواب به خان ته د جندول د نیولو په عوض کښې شل زره روپۍ ورکوی او د خپلو ډلهایزو سلارزو او د پښتخان نه به لاس اخلی، د دې په بدل کښې به خان هم په جندول کښې خپل ډلهایز په ډاکه پرېږدی، او نواب ته به اجازت ورکوی، چې د غلته څه غواړې هغه وکړې. دا فیصله داسې وه چې یو فریق ته هم پکښې د کمتې یا تاوان احساس نه کېده.

په نومبر کښې د برسوات واقعاتو یو ځل بیا تشویشناک شکل اختیار کړو، د سوات د سیند د ښي غاړې سواتو قبیلو داسې محسوسه کړله، چې د دیر نواب د هغوې په کورنو چارو کښې لاس وهنه کوی، نو ځکه یې لېونی فقیر ته بلنه ورکړله، هغه په پنځه ویشتم ۲۵ تاریخ په سیند راپورې وتلو، او د نواب خلاف یې د هغوې سره ننګ وکړ، د هغه سره په کښې سمه کښې خلک را غونډ شول، او په دیر یې حمله شروع کړله. په نواب زور واچول شو، چې خان وښوځوی (وښوروی) او د خپل لښکر سره میدان ته راووځي، خو د فقیر د زور نه د وېرې وهم او خپل فطری تذبذب هغه په دوه زړه کښې واچولو. په د برشم ۳۰ نومبر فقیره نیک پیخېلو په سیمه کښې د پنجکوړې د سیند د لورې

(WATERshed) سرله راغے، او که چرې نور مخ په وړاندې تللے وے، نو د چکدرې او دير تر منځ زموږ سړک ته به را رسيدلے وُ، او د دې فورې اثر به داوُ، چې د دير قبيلې به لې د خان سره ملګرې کړې وې، او موږ به د ۱۸۹۷ سنه په شان د يو بل عمومي پاڅون سره مخامخ شوې وو، دا ډېر خطرناک وخت وُ، خو دا زموږ نيک مرغي وه، چې فقير په څه نامعلومه وجه مخ په وړاندې تلل وځنډولو.

دا توقف لنډ وُ ولې بيا هم زموږ په ګټه تمام شو، نواب اوس هم زړه نازړه وُ، خو د زياط عبدالله خان د دولس ۱۲۰۰ سوو سړو سره په غورېدو واوريده، او په فقير ئې يرغل وکړ فقير د سوات سيند خواته مخ په شاه لاړو، د دې سره ټول صورت حال بدل شو، او د کافرو خلاف د عمومي جهاد په ځاې مسلمان د مسلمان سره ونښتلو، نه يواځې دا چې د دير متعلقه قبيلو په فقير لاس اوچت کړ، د دې سره د خلکو هغه يقين هم ماتېدو، چې کښې هيڅوک هم د فقير مخالفت نه شي کولے.

په دې وخت کښې د سوات ګرځنده فوځي ټولګى د سوات په علاقه کښې د لنډاکى خواته ترهيبت ګرامه پورې مخ په بره تللى وُ، او په هند کښې د عاجلو (Emergency) واقعاتو د پاره تاکلى شوې فوځ ته د حرکت حکم ورکړے شوے وُ، خو د دې ونو د استعمالولو ضرورت پيښ نه شو، فقير د ښوجنى سيمې ته د راتلو هڅه وکړه، خو د پينده خېلو د مخالفت سره مخامخ شو

په دې وجه هغه د کوهستان علاقې ته ستون شو او لښکرې ئې خور شو.

دا حقیقت چې زمونږ تشویش بې ځایه نه وُ، د سوات او رانیزو د وګړو د دې اعتراف نه ثابتیږی، چې کله چرې فقیر مخه استیلے وے، نو د هغوئ د پاره به بې له دې چې په هغه پسې شی بله لاره نه وه پاتې شوې.

د دې پاڅون سره چې مونږ ته د بر سوات د قبیلو په حواله د ځان مضبوطولو کومه موقع په لاس راغله، هغه مونږ د نظره ونه غورځوله، تر څو چې د سوات د سیند د چپې غاړې د قبیلو تعلق دے، نوازی خیلو او جنګی خیلو زمونږ سره یو معاهده لاسلیک کړله چې هغوئ به د حکومت خدمت کوی او د سرکار په د ښمنی کښې به د هیڅ قسمه قدم نه پورته کوی . د سیند په چپه غاړه چې د سوات نورې څومره قبیلې وې، د ې تولو د دې نه ورانډې په دغسې معاهده دستخطې کړې وې، خو صرف دا دوه خیله داسې وو چې تر دې وخته ئې تسلیمی ته غاړه نه وه ایښې .

د دې د پاره چې د دیر د نواب او د سوات د سیند د ښې غاړې د قبیلو تر منځ بیا شخړې پیدا نه شی یو معاهده وشوه . د دې معاهدې لاندې د نواب د پاره په دې قبیلو د عشر په شکل پیسې وټاکلے شوې ، چې هر کال به ئې د پنځو کالو د پاره ورکوی متعلقه قبیلو یعنې شموزیه ، سبوجی ، نیک پیخیل او شامیزیه د نواب

دا پېښي ومنلې، او دا وعده ئې وکړله چې فقير با د نواب او حکومت بل دښمن به چرې هم خپلې علاقې ته نهٔ پرېږدي .

د فقير په مخالفت کښې د عمل کولو په وجه نواب د يو زيات شمېر خلکو په نظر کښې خپل مقام بايللے وُ ، د هغوئې دليل دا وُ چې دهٔ له ښکار وو ، چې پخپله بې طرفه (غيرجانبدار) پاتې شوے وے ، او حکومت ئې دې ته مجبور کړے وے ، چې په خپل سر ئې د فقير سره چوکه پوکه کړے وه . په اصل کښې هغهٔ چې څهٔ کړي وو، دا د هغه زور نتيجه وه کوم چې پرېږ زمونږ له خوا اچولے شوے وُ ، او دا زمونږ حق وُ ، چې د هغهٔ نه مو د دغسې خدمت طمع لرلے وے .

اوس زمونږ د پاره ضروري وه ، چې بېرته باجوړ ته لاړ شو ، د نواب او د ناوګۍ د صفدر خان په منځ کښې چې کومه معاهده شوې وه د هغې په نتيجه کښې صفدر خان د پښت خان سميع الله خان د پښت نه شړلے وُ او د جندول خانان د قيديانو په شکل کښې د نواب په ولقه کښې وو . د عبدالمجيد خان نه بغير څوک چې پخپل سر د جهل نه تښتېدلے وُ . نور ټول خانان نواب د يو لنډ وخت نه روسته خوشې کړل .

سنه ۱۸۹۹ء :-

کله چې د دير ملیان مونږ نه په څهٔ خاص زيان رسولو کښې ناکامه شو ، نو بيا ئې د حکومت د نوکرو نه د خلکو د زړونو بدلولو په لړ کښې هلې ځلې شروع کړې او د دې مقصد د

دپاره یې په څو موقعو د هغه کسانو د جنازې نه انکار وکړ ځوک چې په لیوې کښې وو، او مړه شوي وو، مونږ نواب مجبور کړ، چې د دې عمل د مخنیوي د پاره جدي (تهینک) قدم پورته کړي. د لیوې کسان هم په دې بې غزنی غصّه وو، او دا اخلاق یې ورکړے وُ، چې کهچرې بیاگوم ملا داسې کار وکړي، نو مونږ به ترې ګوله وباسو.

د فرورۍ په میاشت کښې د ناوګۍ په کورله کښې وراپنے راغے، وجه یې دا وه چې د رود سیمه پلار کشرځوي یې احمد جان له ورکړله او مشرځوي محمدعلي جان په دې خفه شو، په دې ارخ محمدعلي جان او د پښت ولایت خان وُو، او په بل ارخ احمدجان او د ختار سردارخان وُو، د یو بل سره د مخالفت لړلو سره سره دوي د ناوګۍ د خان مخالف هم وو خو بیا هم خبره د ډېرې ړاګې ته ونه وتله.

د فرورۍ په اخره کښې مک میهون د میجر د بېنې نه د دیر، سوات، چترال د ایجنسي چارج واخستو، او د باجوړ تول خانان د ډرنلوي په دول سلام ته حاضر شول، نواب د ډېر ناروغه وُ، نو ځکه راننغلو، خوخپل مشرځوي اورنګ زیب چې په بادشاه خان مشهور وُ، رالیږلو، په مارچ کښې د نواب مالي مرسته (۵۰۰۰) پنځوس زره روپۍ سالانه زیاته کړے شوه.

د جنډول خانان د زندان نه د وتلو نه وروسته په

پېښور کښې پراته وو ، او دا محڅه ئې کوله ، چې کمشنر او لفټننټ ګورنر مداخلت وکړي او هغوئ ته نواب په جندول کښې خپل ځايونه بېرته ورکړي خو په دې مقصد کښې بريالی نه شول ، هغوئ بيا د مالاکنډ پولېټيکل حکام ته مراجعه وکړه ، او د دې نه وروسته وائسرای ته ، خو نتيجه ئې يوه وه ، دوئ ته ووئيلې شول چې که چرې تاسو د اباسين په پورې غاړه چرته اوسېدل غواړئ نو ستاسو د طرفه به د حکومت سره د پنځه زره روپو سالانه ماجب خبره وکړې شي ، دوئ ووئيل چې په دې مونږ خپل ځانونه او ملکرې نه شو ساتلې نو ځکه هم په دې ځای خبره پائې ته ورسېدله . او هغوئ باجوړ ته ستانه شول .

اوس محمد علی جان په داګه د خپل پلار سره لاس او ګرېوان شو او د ډېر نه راشے ، په دېر کښې نواب په ايستلې وسله هغه ته هر کلے ووې ، او سلارزو ورسره د خواخوږئ اظهار وکړه ، کله چې بېرته تلو نو د ماموندو او مهمندو د قبيلو ورکړو بدرګه کړه نواب په ظاهره داسې رنګ ورکاوه ، چې هغه د پلار او ځوئ په منځ کښې سوله راوستل غواړي ، خو په اصل کښې هغه تر خپله وسه داکوښښ کاوه ، چې د دوئ روغه ونه شي ، په دې لړ کښې هغه تر دې حده ورانډې لاړو ، چې د محمد علی جان سره ئې پښت ته خپل لښکر لېږل غوښتل ، او بهانه ئې داکوله ، چې هغه د جندول په علاقه کښې ځينې چوڼه بيا اباد ول غواړی خو زمونږ د حکم په وجه ئې بيا داسې ونه کړے شول . محمد علی جان

دے ته رضا کړے شو، چې ناوګۍ ته لاړ نشي ، او د خپل پلار سره خبرې اترې وکړي ، د مځ په ئیماني کښې د دوي ترمنځ کشاله حل شوه .

میان ګلانو یو ځل بیا په سوات کښې د نواب او د هغوي ترمنځ د روحاني او دنیوي قوت د تقسیم په مسئله حکومت ته مراجعه وکړله .

د ناوګۍ د خان او سالارزو ترمنځ کشاله مخ په وړاندې لاړه ، او په باجوړ کښې جګړه وشوه ، چې فائده ئې خان ته ورسیدله ، خو د بده مرغه مسئله د تل د پاره حل نه شوه ځکه چې په جرلائي کښې سالارزو ، ماموند و او د چارمنګ سالارزو په شریکه په خان حمله وکړله ، په خان ئې بده ورځ جوړه کړه . نو ځکه ئې مونږ ته د کمک او کارتوسو د پاره خواست وکړ مونږ هم په دې مرحله کښې میدان ته راغلل ، او حالات ئې ډیر تشویش ناک کړل ، مونږ دا عقلمندي وګڼله ، چې د خان کمک وکړو ځکه چې د دې سره به په باجوړ د قوتونو توازن برحال پاتې شي او د هغه (خان) د پاره مو لس زره کارتوس منظور کړل ، تر او سه پورې نواب دا قبیلې د خان خلاف راپاڅولو ته لمسولې ، او د پیسو او وسلې د مرستې وعدې به ئې ورسره کولې ، د هغه حالت هغه وخت د کتلو وُ ، کله چې مونږ خبر ورکړ چې لکه څنګه چې تا تل د دې شخړو د ختمولو د خواهش اظهار کړے دے ، اوس دا ډیره ښه موقع ده ، چې د دې مقصد د پاره دا کارتوس په ایمانداري په

پوره توکه ناوګۍ تموړسونه، که چرې انکار یې کاوه، نو د حکومت د نظره غورځیده، او که چرې داسې یې کول، نو د هغه قبیلو د خندا کیدلو، د چاسره چې یې د مرستې لوظونه کول، خو بیا هم کارتوس په حفاظت سره ورسیدل، او د خان پښې یې ټینګې کړې، ځکه چې خه خو د دې کلک نه کار واخستلشو او څه د دې په وجه د قبیلو د وګړو په حوصلو هم اثر وشو. د جولائي ترمنځه پورې د ډیرو ستونځو نه پس د خان او قبیلو ترمنځ سوله وشوه، خان مهمندو ته هغه دولس کلي حوالے کړل، کوم چې د جګړې بنیاد وو، او په حقیقت کښې د مهمندو حق وو. د نواب د سازشونو له کبله خان تر یوې میاشتې پورې ویره کړے شول چې د مهمندو سره کشاله هواره کړي.

په اګست کښې نواب چکدرې ته راغے، او د ناوګۍ صفدرخان ورله راوغوښتلے شو، او د دواړو ترمنځ د پولیټیکل ایجنټ په مخکښې لیدل کتل وشو. د ډیر بحث نه روستو د هغوی په منځ کښې سوله وشوه، او د نیک نیتۍ د اظهار او دې باور سره دیوبل نه رخصت شول، چې په راروان وخت کښې به دیوبل په خلاف د سیسې نه جوړوی، په دې موقعه د هغه معاهدې تجدید هم وشو، کومه چې وړاندې د دوی ترمنځ شوې وه، خو عمل ورباندې نه و شوے (متن یې د کتاب په اخر کښې ورکړے شوے دے).

د تېر څه وخت راسې په دې علاقه کښې د ګهیر په دسیسه

کښې د میاں رحیم شاه لاس پهٔ نظر راتلو، او د دیر او ناوګۍ پهٔ کشاله کښې د هغهٔ عمل خبره تر اخري حده ورسوله، ددې د پاره چې هرڅاته ترې فائده ورسي، دا ضروري شوه، چې هغه د دې علاقې نه وشړلے شي، د دیر د نواب دیوې لور سره د وادهٔ کولو په وجه پهٔ دې علاقه کښې د هغهٔ اثر زسبت زیات شوے وُ، او پهٔ حقیقت کښې هم هغه پهٔ عملي ډول د دیر حکمران وُ، او دا زمونږ د پاره نورهٔ د زغم ورنهٔ وه، هغهٔ ته حکم وشو، چې د علاقې نه لاړ شي، او بیرته صرف پهٔ هغه صورت کښې راتلے شي چې د پولیټیکل ایجنټ نیکلے اجازت ورسره وي، تر ننه پورې ورته دا اجازت نهٔ دے ورکړے شوے، اګر چې رحیم شاه او پهٔ دیر کښې د هغهٔ ډله اینو او حتیٰ چې نواب پخپله هم د هغهٔ د بیرته راوستلو د پاره هڅې کړې وې.

د الهٔ ډنډ د خانانو تر منځ چې کومې شخړې او بدۍ پهٔ مسلسل ډول د ډیرو کلونو راسې را روانې وې، او س دا سې ځائې ته راورسیدلې چې نرمو او ورو اقداماتو ورباندې پهٔ زړهٔ پورې اثر نهٔ شو کولے نو ځکه دواړه خانان مردان ته وشړلے شو او دا شرط ورته کېښودلے شو، چې هلهٔ به بیرته راځي، چې پهٔ خپلو کښې د امن ناکه کاونډیانو پهٔ حیث د اوسېدو معاهده وکړي هغوئ پهٔ جون کښې مردان ته لاړل، د ړې میاشتې د خپلو ډلو نه لرې پاتې شول، او پهٔ سرو مغزو ئې پهٔ خپلو معاملو غور وکړو او د نورو جګړو نهٔ کولو شریکه معاهده ئې راولېږله

په هم دې شرط په اګست کښې هغوئ ته اجازت ورکړے شو چې خپلو کورونو ته راشي.

په پسرلي کښې د لوارۍ د درې په لاره د واورې د لويو لويو ګټانو (برفکوچ) د را رغړيدو، د نوښار نه د راتلونکي فوځ د زياتي چړمه سره د مخامخ کېدو او د کيمپ د ميدان په خوا وُشاه کښې د فصل د ناموجوديت خواهش داسي عوامل وو، چې په مونږ لې د چترال ريليف د سپرلي نه منى ته راوا ړولو.

د اکتوبر په ړومبۍ نيټه فوځ د چکدرې نه روان شو او راتلونکي فوځيان په شپږويشتم تاريخ بېرته راورسيدل. ټول کار سم وشو او په سړک د هيڅ قسمه بده پيښه ونه شوه. داخل هم لکه د پخوا په شان د قبيلو د پيکټونو د نظام منګلو واخستلے شو.

سنه ۱۹۰۶ :-

په مارچ کښې د دير نواب د وائيسرائ په بلنه د هند دوره وکړله، او تر کلکتې پورې لاړو، د پيرنګي هند د سفر په دوران کښې د نواب سترګې وغړيدلې، او د وائيسرائ سره د دوه ځله خبرو اترو په نتيجه کښې د هغه په ذهن ښه اثر وشو، او کله چې بېرته راغے، نو دا ثابته شوه چې دا کار زمونږ د پاره سخت ګټور وُه.

په اپريل د اتمانخېلو په علاقه نوګي کښې جګړه وشوه، ځينې کاکا خېل مياګان ګا بنوچې په اصل کښې د کوټ وو خو په نوګي

کښې اوسېدل، ځکه چې د کوټ خلکو د خپلو بد عملیو له کبله د کوټ نه ایستلي وو، شموزي او نور و اتمانخېلو ته د کمک خواست وکړ، دوی د مخکښې نه هم د کوټ نه دا شکایت لرلو، چې د کوټ د لارې د تجارت کوم مال چې د هغوی علاقې ته راځي نو د کوټ خلک پکښې مداخلت کوي، د کوټ د تالا کولو او د ټوټې په زرخېزه سیمه د قبضې په لالچ کښې هغوی لښکر راغونډ کړ، او د کوټ نه چاپېر شول، سمرانیزي چې د کوټ سره یې کلکه تړون لرلو، هم راولېږدېده، زمونږ له خوا مداخلت ضروري شو، یوه جرګه مقرر کړے شوه، چې دواړه طرفه غلي کړي، او لښکرې یې وسلې کړي، او معامله د هوارۍ د پاره په مالاکنډ کښې پولیټیکل ایجنټ ته وسپارې، د ټوټې اتمانخېل دې ته رضا شول چې په راروان وخت کښې به خپلې ټولې شخړې د هوارۍ د پاره حکومت ته حواله کوي، او نورو اتمانخېلو د الوظ وکړ، چې بیا به په ټوټې غرض نه لري، د ټوټې د خلکو په خوښتنه په کوټ کښې د لېوې یوه وړه غوندې جوړه شوه، د دې اقداماتو سره په عمومي ډول په اتمانخېلو او هم د سمرانیزو په خلکو ډېر ښه اثر وشو.

داسې معلومېږي لکه چې اوس لېونی فقیر ته دا احساس شوے وُ، چې د نورې دښمنۍ نه هیڅ نه جوړېږي، نو ځکه یې په نزدې وختونو کښې د خپل یو مخوریز ملګري پواسطه د مالاکنډ د پولیټیکل ایجنټ سره رابطه کړې وه، د هغه د دې عمل هر کله

شوے دے او فقیر دا وعده کړېده چې هغه به د پیرنګی حکومت خلاف نور د هیڅ قسم د ښمنانه فعالیتونه نه کوی ، د فقیر او پولیټیکل ایجنټ ترمنځ د پیغامونو او ډالو (تحفو) د ورکړې راکړې خبره په ټوله علاقه کښې ډنډوره شوې ده او ظاهره ده چې نتیجه ئې د فقیر د اثر د کمېدو په شکل کښې ښکاره شوېده په هغه او د هغه په ملګرو د حکومت نه د پیسو اخستلو تور لګېدلے دے ، او د هغوئ انکار هغه خلک نه مني ، څوک چې د هغوئ په کته کښې د برخې دعوې لري ، دا وئیل ګران دی چې بدمرغه فقیر د دې بې بنیاد د یقین په وجه د خلکو د نظره غورځېدلے دے چې د حکومت نه پیسې اخلی او که نه ، په دې چې هغه په دوامدار ډول د دې تور نه انکاري دے .

د بلجوړ حالات د څه مودې راسې ناټیکاوه وو ، او د جون په میاشت کښې خبره د ناوګی د خان او د چارمنګ د سرکندخان ترمنځ جګړې ته ورسېدله ، د سرکندخان سره ماموند سالارزی او د میتې مهمند هم ملګري وو ، خان ئې په یو وخت کښې بد حاله کړے وُ ، خو بیا هم بې د حکومت د مرستې نه ئې پښې ټینګې کړې او معامله غلې شوه . د میتې مخوریز مشر غیرت خان د ناوګی د خان سره په دې هیله د ښځو رشته وکړله چې د دې سره به د هغوئ ترمنځ د یو وخته پورې د ډاګی د کلي بدی او جنګ جګړې ختمې شی ، په اوړی کښې په برسوات کښې د نواب نه په دې وجه تر ډېره حده د خلکو

زوړ بداوے پیدا شوے وُ چې هغه د خپلو محاصلا نو مقرر ولو او د هغوئ په لاس د ښک ښخپلو نه د عام داتو راغونډ ولو هڅه کوله ، چې دا په حقیقت کښې د هغه معاهدې خلاف وړزی وه کوم چې د دوئ تر منځ په ۱۸۹۷ء کښې شوې وه ، د ښک ښخپلو نه دا غلطي وشوه ، چې د نواب په راليږلی سړي ئې لاس اوچت کړو . او بيا تسليمېدلو ته مجبور شو .

چترال ريليف په اتم اکتوبر د چکدرې نه شروع شو ، او په ۲ دويمې نومبر راتلونکی فوځيان په خير خيريت راورسېدل لکه د ښوا غونډې د قبائيلي ذمه وارۍ تابيا شوې وه ، د دغه وخت نه د دې رپورټ د ليکلو پورې دا سې څه خاص واقعه نه ده شوې چې سړے ئې وليکي .

د سنه ۱۹۰۰ء د جنورۍ په لومړۍ نېټه د نوښار او درګۍ ځې د مالاکنډ د درې په لمن کښې پرته د ۵ ترمنځ د اورګاډي تګ راتګ شروع شو . او بايد هم په دې خبره دا تاريخ پائې ته ورسوو .

«پائې»

## هغه معاهده چې د دير نواب د ۱۸۹۸ء سنه په دسمبر کښې د سوات، چترال باجوړ او کابل سره د خپلو بريدونو (پولو) د تعين په لړ کښې کړې وه :

"زه د دير نواب محمد شريف دالوظ کوم، چې به راتلونکې وخت کښې به نه خو په هغو علاقو او خلکو تيرې کوم او نه به د هغوئ په چارو کښې کوتې وهم ځوک چې زما د ملاقې د پولونه بهر واقع دی. زه دا هم اقرار کوم چې که چرې زما يا زما دولتانو او دکاونډی قبيلو ترمنځ شخړه پيدا شی. نو زه به په وقتی ډول د دير، سوات او چترال د پوليټيکل ايجنټ په توسط دهند د حکومت د سپوونې او مشورې سره سم عمل کوم.

زما د علاقې موجوده بريدونه په لاندې ډول دی.

۱ـ د چترال سره به د لوارې د سلسلې څوکې او هغه لوړه (watershed) زما پوله وی. د کومې تعين چې حکومت کړے دے. بايد ذکر شی چې د خارو و ساتلو د حق په لړ کښې چې پوليټيکل ايجنټ زمونږ د زړو حقوقو په رڼا کښې د چترال سره کوم سمون جوړ کړے دے هغه به برقرار وی.

۲ـ د هغه معاهدې لاندې کومه چې ما او د ناوګی خان لاس ليک کړې وه، د باجوړ او اتمانخېلو سره به ايلنی، ترپمن "Trepaman" او د تېکورې کنډو زما پولې وی.

۳ـ جندرې سر، د پنجکوړې لوړه او د شامېزې پوله د تېرت او برنيل د بېلتون د نقطې پورې به د کوهستان سره زما

سرحد وی .

۴ـ د سوات سره د سوات د سیند غاړه .

۵ـ د کابل د امیر سره به مې پوله هغه وی کومه چې حکومت ټاکلې ده .

زه نن د کال ۱۶ ۱۳ هـ د رجب د میاشتې په اوه لسمه نیټه په دې معاهده خپل مهر لګوم ، چې د راتلونکی وخت د پاره سند پاتې شی .

## هغه معاهده چې ناوګۍ د خان او د دیر د نواب تر منځ په ۱۴ / اکتوبر سنه ۱۸۹۸ء شوې وه او په اګست سنه ۱۸۹۹ء کښې ئې د دیر، سوات او چترال پولیټیکل ایجنټ په وړاندې تجدید شوے وه

له دې کبله چې زما او د دیر د نواب په منځ کښې په څه خاص مسئلو زړه بداوے او دښمنی راروانه وه، نو ځکه اوس مونږ په خپلو کښې روغه وکړله او معاهده مو لاس لیک کړله او د پولو تعین مو وکړو. د دې په بنیاد به د ټکوړې کوتل، ایلنی، چوغه او ترپمن کوتل زمونږ پولې وی او د دیر نواب به د دې پولو نه بهر په یو حالت کښې هم غرض نه کوی. او همدارنګه به زما د هغه د طرف سره څه کار نه وی. دیر دوست به د بل دوست او د یو دښمن به د بل دښمن وی. که چا د دې معاهدې خلاف ورزی وکړه نو هم هغه به ئې ذمه وار وی. دا لیک وشو چې د راتلونکی وخت د پاره سند پاتې شی.